# د فخر المشائخ

# میا گل صاحب رحمة الله علیه

## پېژندنه

ټولونکی

د اسلامي اثارو د ساتلو علمي او ادبي ټولنه

د

## جناب حاجي آغا د

نظر لاندې

د - ۱۳۶۲ - هجري لمريز کال د میزان میاشت

# د فخر المشائخ

رحمة الله علیه

# میا ګل صاحب

## پیژندنه

ټولونکی

---

د اسلامی اثارو د ساتلو علمی او ادبی ټولنه

د

## جناب حاجی اغا د

نظر لاندی

د - ۱۳۶۲ - هجری لمریز کال د میزان میاشت

---

# د مترجم څو خبرې

دغه رساله چه د افغانستان د کاپیسا د ولایت د تګاب د جناب فخر المشائخ میاګل صاحب "رحمته الله علیه" په باب لیکلې شوې ده یوه داسې هنداره ده چه په هغې کې د دغه اسلامي لوی شخصیت او د طریقت او سلوک د مرشد پیدا ایښت، نسب، علمي مقام، تصوفي ژوند، د سیاست مدارانو او حاکمانو په مخکښې د هغه د جرأت او صراحت وینا او د الحاد او فساد په مقابل کې د هغه د اعتصاب او مظاهرې د قیام او د جهاد او هجرت حقیقت او واقعیت ښه برېښي او دغه رساله پخپلو ارزښتناکو محتویاتو او ځلېدونکو حقائقو سره علاقه مندانو ته د علم او معرفت، تصوف او طریقت، جهاد او ایثار نه هېرېدونکې سوغات په مخکې بږدي.

مرحوم فخر المشائخ که د "کل نفس ذائقة الموت" په حکم له دنیا څخه سترګې پټې کړې ولې پخپلو علمي خدمتونو، د طریقت او سلوک په ښودلو، د اسلام د قدسیت څخه په دفاع کولو او د باطل او فساد د عناصرو او عواملو په مقابل کې په جهاد کولو د حق مینو مسلمانانو په نظر کې ځرګند شخصیت او د اسلام په باب د هغه پاکې

هیلی او په زړه پوری هلی ځلی د پند او عبرت ګټور درسونه او د پیروی ستری منونی دی.

مرحوم فخرالمشائخ رح خپل مدرسی او تعلیمی دریځ سره د علم او معرفت چراغونه او خپلی خانقاه او خپل تصوفی مقام او طریقت سره د حق او حقیقت میدان منځ ته راوستل او په ریاضت او معنوی تصفیی سره ئی د مریدانو او علاقه مندانو د نفسونو تهذیب او د هغو د روحانیت بنه توب او کمال په بنه توګه ترسره کړ.

مرحوم فخرالمشائخ رحمته الله علیه خپل ژوند او عمل د اسلام د دوه ؤ شعارونو په اساس غوره کړی ؤ چه یو ئی محراب او بل ئی منبر دی یعنی:

په محراب کی ئی د واحد لا شریک خدای سره راز او نیاز کاوه او د عبادت په وسیله ئی د الهی رضا او قرب غوښتنه کوله او منبر ئی د اسلامی مبادیو او حقائقو او د ژوندانه د تنظیم او بنه توب د لاروا او عوا ملو وسیله بنودله.

مرحوم فخرالمشائخ رحمته الله علیه خپل ژوند څنګه چه په یوه روایت د حق لاری قهرمان شهید او سید شباب اهل الجنة حضرت امام حسین رضی الله عنه او په بل روایت د دغه لوی مجاهد له ایمانه ډکه او غیرتمنه خور بی بی زینب رضی الله عنها ویلی:

"الحیاة عقیدة وجهاد" خپل ژوند ئی د اسلامی عقیدی او اسلامی جهاد په اساس کړځولی ؤ. او جهاد ئی په عام مفهوم سره تطبیق

کړی وُ یعنی:

دحمید یه د مبارکی مدرسی په موجودیت دعلم او معرفت په وسیله د ناپوهۍ سره - ددعوت او تبلیغ له لاری دباطل، فساد، انحرافاتو ظلم او ناروا سره. دمجاهدو عناصرو په پاڅون او قیادت د ملحدانو او متجاوزینو سره-

هو! دا باید وویل شی چه دغه دحقی لاری لوی مجاهد څه چه ئې وسه وه دخپل اسلامی دین او خپل اسلامی هیواد دخوندی ساتلو په لاره کی ئې هیڅ کمی نه دی کړی او نه ئې په دغه لاره کی دد ښمنانو او جابرانو دقدرت دتهدید په مقابل کی دکومی ویری او خطر احساس کړی دی او نه ئې دخپل اسلامی رسالت دسرته رسولو په لاره کی د مادیاتو او دنیوی مفامونو په لومه کی پریوتی دی بلکه څنګه چه پوهیده او څنګه چه د اسلامی حقیقی لوی دردخاوندوُ تل ئې دافغانستان مسلمان او غیرتی اُولس او بیاتې انغانی مهاجرینو او مجاهدینو ته وخت په وخت داتحاد او جهاد بلنه ورکوله او بې اتفاقی او بی نظمی ئې د مسلمانانو دپاره لوی خطر او مصیبت ښوده. دغه دا سلام او مسلمانانو دخیر غوښتونکی په هلو ځلو که څه هم تریوی اندازی د اسلامی ډلو او مجاهدینو ترمنځه اتحاد وشو ولی د بشپړ اتحاد او د ملحدانو او ددین او انسانیت د دښمنانو له منګولو څخه د انغانستان د اسلامی خاوری دازادی لوی ارمان ئې د ځان سره

ویوړ، (انا لله وانا الیه راجعون) زمونږ د ټولو هیله داده چه لوی او مهربان خدای دی پخپل فضل او عنایت سره د مرحوم وروستـه پاتې کسانو او بیا د هغه خلیفه ګانو او ناشاټونو ته توفیق ورپه برخه کړی چه د هغه اسلامی هیلی په ښه توګه ترسره کړی او د هغه په شان د اسلامی خدمتونو مصدر وګرځی. ومن الله التوفیق " بشار"

ربیع الاول ۱۴۰۶ هـ ق

---

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله رب العلمين، والصلوة والسلام على سيد الانبياء والمرسلين وعلى آله وصحبه اجمعين وبعد،

فخرالمشائخ (جناب میاګل صاحب) دده دخپلوانو دخبر په اساس د ۱۳۶۲ هجري لمريز کال دميزان په نهمه ورځ د ماز یګر په څلورو بجو او پنځه ویشتو دقیقو او د ۱۴۰۳ هجري قمري کال د ذوالحجي په څلورویشتمه د حج له اداکولو څخه وروسته په مکه معظمه کې وفات شو او په جنة المعلى کې دفن شو او دميزان په شپاړسمه او اولسمه نیټه د هغه فاتحه په پیښور کې واخستله شوه او په فاتحه کې ئې په زرګونو زرګونو تنو عالمانو، دوستانو، مهاجرینو او مجاهدینو او نورو ګډون وکړ.

ددې دپاره چه دافغانستان دغه اسلامي ستر شخصیت او دحق لاري لوی مجاهد معرفي کړو. دادی ددغه مرحوم دژوندانه حالات په دغه وړه رساله کې په لاندي ډول خپریږي:

دغه رساله چه دجناب فخرالمشائخ میاګل صاحب په باب په لنډ وخت کې په ډېرې چټکتیا سره لیکل شوې دامعنی نلري چه ګوندي د هغه د ژوندانه ټول اړخونه یاد شوي او د نورو مؤلفینو دپاره دغه مرحوم د ژوندانه په علمي، تصوفي او اخلاقي اړخونو او د باطل او ناروا په مقابل کې د هغه د جهاد او مبارزې په ساحو کې

دخبرې اویاد ونې ځای نشته. کلا وحاشا. یعنې داسې نه ده بلکه د دغه عارف شخصیت فضائل د دمره ډیر دی که دهغوپه باب د بېرې رسالې وليکلی شي نو ځای ئې شته البته دادقلم او فضل دخاوندانو په همت اړه لري چه کوم وخت د دغه مرحوم په باب نور پاتې معلومات تر لاسه کړي هغه وليکي او خپور ئې کړي.

ددې یادونه هم باید وکړو چه یوه بله رساله د (شیخ الاسلام صاحب میارک نکاب) تر عنوان لاندې هم شته چه په هغې کې د مرحوم فخرالمشائخ د محترم پلار د علمي او تصوفي ژوند ځنې برخې ذکر شوي او په هغې کې د مرحوم فخرالمشائخ سره چه په هغه وخت کې لا ژوندی ؤ هم یادونه شوې ده او څرنګه چه دغه رساله د مرحوم فخرالمشائخ په ژوندانه کې لیکلې شوې نو هغه په خپل اصلي حالت پرېښودو اګرکه ددغې رسالې د چاپولو په وخت کې د اصلاح او تعدیل امکان هم شته. او په هغې کې د فخرالمشائخ د وفات یادونه باید هم شوې وی مګر د وخت او زماني د ترتیب له مخې او د اچه دغه رساله د هغه په ژوندانه کې لیکلې شوې نو په هغه رساله کې د هغه د ژوند او په دغه رساله کې د هغه د وفات حالت په نظر کې نیول کېږي.

د مرحوم میاګل صاحب اصلي نوم شریف محمد شریف او پلار ئې شیخ الاسلام مرحوم ملا حمید الله ( د نکاب مبارک صاحب) دی او په ۱۳۱۹ هجري قمري کال چه د ۱۲۸۰ هجري لمریز کال سره برابر دی

دلغمان د ولایت د علی شنګ په اسلام آباد کی پیدا شوی او د
شیخ الاسلام د کورنی چراغ ئې روښان کړی دی او له پلاره یواځی
زوی دی چه پلار خپل ټول پام د هغه روزنی ته متوجه کړی ؤ.

میاګل صاحب د علم، ذکر او فکر په ساحو او د فضل د خاوندانو
په منځکی ورځ په ورځ د کمال لوری ته قدم اېښود. او هغه کسان
چه د هغه د روزنی د پاره ټاکل شوی ؤ د غو ټولو کسانو کوښښ
کاوه چه شیخ الاسلام د هغو د تعلیم او تربیت څخه یادونه وکړی
او دوی داسی یو شخص ته متوجه وی چه د علم د چراغ روښانول
او د دغه کورنی فضل به په هغه پوری تعلق نیسی.

میاګل صاحب د فطری زکاوت له مخی د ټاکلی وخت څخه په لږه
موده کی د علومو زده کړه وکړه او د هغه په تربیه کی د محترم پلار
او د علماؤ او د فضل د خاوندانو تاثیر زیات ؤ مرحوم میاګل صاحب وکړی
شو چه د خپل پلار علمی او تصوفی اعتماد ترلاسه کړی او د جمعی د
لمونځونو امامت په غاړه واخلی.

د شیخ الاسلام تر مخه د جمعی د لمانځه امامت که په نکاب کی ؤ یا
په نورو ځایونو کی لکه د کوهدامن د داؤد زائی، سبزسنګ،
چهاریکارو، قلعه بلند، دلغمان د اسلام آباد او تیر ګر یو ځایونه
شول کوم اسان کار نه ؤ چاچه به دغه وظیفه په ښه توګه
سرته رسوله او د هغه پسی به په زرګونو زرګونو خلک او په
سلګونو عالمان، شیخان، خطیبان او د فضل خاوندان ولاړ ؤ

نو بیشکه هغه به د علم او فضل خاوند وُ چه د دغې مهمې وظیفې د پاره به ویاکل شو.

محترم پلار د هغه د دغه راز استعداد او اهلیت څخه چه برخوښ وُ چه دغه د کتاب او سجاده وارث او دغه اخلاقي او عالم ځوان به د ورځو څخه یوه ورځ د پلار په ځای کښېني او د اخلاص لرونکو او د علم او فضل د خاوندانو سترګې به روښانه کړي.

د پیشوایۍ او ارشاد د مرتبو او تدریج د سلسلې په نظر کې نیو لو سره سره لومړی هغه ته د شیخ الاسلام ځینې علمي او روحاني وظیفې ورو سپارلې شوې او شیخ الاسلام د هغه وظیفې د خپلې ژورې کتنې لاندې و نیولې او هره ورځ ئې د هغه د علمي چارو او عملونو څارنه کوله او د جزئي اشتباه په پیدا کیدلو سره ورته ئې یادونه کوله. د دغه حالت ورځ په ورځ خپلې طبیعي مرحلې وهلې او کله چه شیخ الاسلام (رحمته الله علیه) ښه اطمینان پیدا کړ چه هغه خپله علمي، تصوفي او اخلاقي لومړۍ مرحله په ښه توګه سرته رسولې او هغه د خپل پلار منظور پوره کړی دی نو بیائې هغه ته د ارشاد وظیفه ورو سپارله او خوتنه عالمان ئې د هغه د مراقبت د پاره وټاکل او هغو د میا ګل صاحب (رحمته الله علیه) علمي او تصوفي اعمال د خپل نظر لاندې و نیول.

شیخ الاسلام رحمته الله علیه د څلورو طریقو یعنې د قادریه، د نقشبندیه، چشتیه او سهروردیه مرشد او لار ښود وُ ولې زیاتره د قادریه طریقې تابع وُ او د تصوفي مراحلو په لار څنګه چه

شیخ عبدالقادر جیلانی (قدس الله سره) ویلی میاګل صاحب ته ئې لومړی د قادریه طریقې ښوونه وکړه او د هغه شخه ئې وغوښتل چه د تصوفي مقاماتو او احوالو په نظر کې ښولو سره د طریقت آداب د عمل او تطبیق لاندې ونیسي او د قادریه طریقې په ښود ئې او ورکولو پیل وکړي.

کله دا سې کېده چه کوموکسانو به دارشاد او طریقې انتخار ترلاسه کاوه نود هغو موضوع به میاګل صاحب ته حواله کېدله ځو د غه جناب هغوی د قادریه د عالی او مبارکې طریقې په حلقه کې د هغې د اساساتو سره سم داخل کړي او بیا په قادریه طریقه کې د پوخوالي له مشاهدې وروسته هغه ته د دريو نورو طریقو چه د نقشبندیه، چشتیه او سهروردیه طریقې دي اجازه هم وشوه.

دغه رساله د تالیفي تنظیم په اساس د څلورو فصلو نو لرونکې ده:

(۱) د مرحوم د علمي ژوند په باب.

(۲) د هغه د تصوفي ژوند په باب.

(۳) د سیاستمدارانو او حاکمې طبقې تر وړاندې د هغه حقه وینا.

(۴) د هغه د جهاد، هجرت او د جهاد په ساحه کې د هغه د خدمت او فعالیت په باب.

---

# لومړی فصل

## دفخرالمشائخ میاګل صاحب علمی ژوند

مرحوم میاګل صاحب تفسیر شریف، حدیث شریف، فقه شریف، اصول حدیث، صرف او نحو او نور مروجه علوم دخپل وخت له عالمانو او فاضلانو څخه زده کړي دي ولی ددغو علومو دتدریس فرصت او موقع ورته پیدا نشوه مګر دمحترم پلار شیخ الاسلام رحمة الله علیه لخوا دمرحوم ژوند داسې تنظیم شو چه دتصوفی مراحلو له لاری دجانشینۍ دمقام دپاره برابر او خپل علمی کمال ئې دعلمی مجلسونو اوخبرو په وسیله ښکاره کړي.

مرحوم فخرالمشائخ به کله کله دینی مدرسو او تادیبي ځایونو ته تشریف وړه. او ددغو ځایونو په باب به ئې جناب شیخ الاسلام (رحمة الله علیه) ته معلومات وړاندی کول.

مرحوم فخرالمشائخ دعلومو په لړکی دقرأت او تجوید دعلومو سره خاصه علاقه درلوده او په دغه باب دډیر مهارت شهرت ئې ترلاسه کړی و. باید وویل شي چه یو شمیر لوی جوماتونو د مدرسو حیثیت درلود او څوک چه به دتدریس دحلقی مشر و هغه به دطریقي دشیخ په حیث خپله وظیفه هم ترسره کوله. البته

هغو کسانو چه د پنجشیر درخي مدرسه څخکي کلونوکی د مرحوم مولوی عبدالمنان صاحب تر سرپرستۍ لاندی لیدلی دهغو کتنه زموږ ددغي دينا تصديقونکی ده چه دغه جومات له پوی خوا د لمونځ کونکو دپاره دلمانځه اوراز اونیاز ځای او له بلی خوا دسلهاؤ سلهاؤ زده کړيو دپاره د علمي زده کړو مدرسه وه اوکله چه به طالبان له دغي مدرسي څخه فارغ شول نوهغوته به ددستاربندۍ په غونډه کی د فراغت سندونه يعنی شهادتنامي ورکول کيدلی.

دغه جومات او دغه مدرسه چه د شيخ الاسلام (رحمته الله عليه) له خوا جوړه شوی وه د قادريه طريقي د خپرولو ځای هم ؤ او دغه طريقه د مرحوم عبدالمنان صاحب لخوا ورکول کيدله.

د پنجشیر درخي لوی جومات چه د مرحوم شيخ الاسلام او مرحوم فخرالمشائخ (رحمته الله عليهما) د نظر لاندی ؤ د پنجشیر د متدينو خلکو په مرسته د پوځه بدلون سره پخپل لومړنی بنسټ د مدرسي په حيث ؤکرځول شو اوپه کی د مدرسي ټول خصوصيات لکه مدرسان د تدريس خونی، درسی حال وليش او د عالمانو غونډه کول مرجود ؤ او د دغه وخت متخصص عالمان دغه کسان ؤ: مرحوم مولوی عبدالاحد صاحب چه د دری په مولوی صاحب مشهور ؤ. مرحوم مولوی عبدالوهاب صاحب چه تر يوه وخته د مدرسی اهتمام هم ورپه غاړه ؤ، مولوی محمد وزير صاحب او مرحوم مولوی محمد نسيم صاحب اوداسی نور عالمان.

مرحوم فخرالمشائخ د دغه جامع جومات او مدرسې او د طریقې د خپرولو د ځای په نسبت د پنجشیر د خلکو سره خاصه علاقه درلوده او کله چه به پنجشیرته راتلل نو د جومات او مدرسې کتنه به ئې کوله. او لازم هدایات به ئې ورکول.

هغو کسانو چه د کاپیسا د جمال آغه جامع جومات، د پروان د قلعه بلند جامع جومات، د نجراب د خارجدره جامع جومات او د نجراب د بچه غان جامع جومات کتلی دی. هغو زموږ د دغې وینا تائید کړی دی چه د دغو جوماتونو د دینی او مذهبی علومو او د عربی ثقافت او د تصوفی طریقو د خپرولو په لاره کی څومره خدمتونه کړی دی.

د جمال آغه جامع جومات د لوی عالم او بزرګوار صوفی مولوی محمد رفیق صاحب، د قلعه بلند جامع جومات د لوی او بزرګوار عالم مولوی عبدالغنی مشهور د قلعه بند په مولوی صاحب، د نجراب د خارجدره جامع جومات د نجراب د جناب خواجه صاحب او د دره بچه غان جامع جومات د بچه غان د حضرت صاحب په سرپرستۍ سره اداره کېدل. په همدغه ډول د پروان د میا شاخ جامع جومات د مولوی مرادخان صاحب او د دولت شاهی جامع جومات د مولوی عبدالجلیل چه د دولت شاهی په مولوی صاحب مشهور و په سرپرستۍ سره اداره کېدل او همدا راز په لغمان، کاپیسا او پروان کی ډېر جوماتونه موجود و او دغه ټول د شیخ الاسلام صاحب له خوا تأسیس شوی او مرحوم میا ګل صاحب د هغو په تکامل او د رسالت په اداکولو کی ئې لویه برخه درلوده.

مونږ د اختصار په توګه د پښتو ليا دولو څخه ډډه کوو او د ځنو په يادونې سره اکتفا کوو او دا بايد د مرحوم فخرالمشائخ د علمي ژوند په فصل کې ياد کړو چه هغه به هميشه پخپلو علمي او تصوفي مجلسونو کې عالمانو ته ځای ورکاوه او هغو ته به ئې وظيفه ورکوله چه د خلکو په غوښتنو کې ګډون وکړي او خلکو ته د دين او مسئوليت بيان وکړي البته دغه ډول شيخ الاسلام (رحمته الله عليه) هم کول او خلک ئې خپلو ديني مسئوليتونو ته متوجه کول. او د هغو عالمانو جملې څخه چه هغو به د شيخ الاسلام (رحمته الله عليه) په مجلس کې ګډون درلود يو له هغو څخه د ټګاب د احمدزائي د قريې مرحوم ملا سيد محمد اخندزاده دی چه د هغه فصاحت بلاغت او د لهجې صراحت د يادونې وړ دی.

دا هم بايد وويل شي چه مرحوم فخرالمشائخ صاحب مصر، لبنان، عراق سوريه، اردنيه، هاشميه، هند ته سفر کړی وو او د غو ځايونو علماؤ سره علمي مفاهمې کړې وو.

## د ټګاب د حميديه شريفيه مبارکه مدرسه

د مرحوم فخرالمشائخ صاحب د لويو او ځرګند و کارونو څخه په ټګاب کې د حميديه د مدرسې تأسيسول دي چه دغه مدرسه د ټګاب، نجراب او پروان د عالمانو او د فضل د خاوندانو او هغوړو سره د مشورې څخه وروسته چه (١٣٢٣) هجري لمريز کال کې منځ ته راغله. او تر (١٣٥٧) کال ئې دوام

وکړ او د غه مدرسه د علم او اسلامي ثقافت د خدمت په لاره کې خپله وظیفه سرته رسوله چه په (۱۳۵۷) هجري لمریز کال د کابل د کمونستي حکومت لخوا چه ورسره د مرحوم فخرالمشائخ او د هغه د مجاهد و زامنو په مشرتابه د تګاب د مجاهدینو لومړنی نښته وشوه. د بمباري لاندې ونیول شوه او په موقتي ډول له خپل علمي فعالیت څخه ولویده. د تګاب د حمیدیه مبارکه مدرسه د (۳۴) کلونو په موده کې وکړی شو چه په سوونو عالمان ټولنې ته وړاندې کړي او په ټولنه کې خپل علمي خدمتونه سرته ورسوي.

هغو کسانو چه په دغه مدرسه کې تدریس کاوه عبارت دي له:

مرحوم مولوي عبدالمنان مشهور د پنجشیر په مولوي صاحب چه د مدرسې د جوړیدلو په وخت له پنجشیر څخه تګاب ته ئې تشریف راوړ او د خپل عمر تر وروستي وخت په تګاب کې وُ او د خپل علمي خدمت په لاره کې وفات شو. او د مبارک صاحب د مزار تر څنګه خښ شو.

مرحوم مولوي عبدالمنان د هیواد له مشهورو او متبحرو عالمانو څخه وُ. او په خپل علمي تبحر سره د داسې صفتونو خاوند وُ چه په نورو کې د غه صفتونه لږ لیدل کیدل. مولوي عبدالمنان (رحمة الله علیه) د تبلیغ، تصوف او نورو علمي موضوعاتو په باب څو رسالې ولیکلې ولې متأسفانه چاپ ته و نه رسیدلې او اوس هم د هغو نسخې په لاس کې نشته البته که د غه نسخې پیدا او چاپ شي نو دا کار به یو لوی

علمی خدمت وی چه سرته رسیږی.

یل لوی عالم مرحوم مولوی عبدالغنی صاحب دی چه د قلعه بلند په مولوی صاحب مشهور دی دغه مرحوم د مدرسی په پیل اوپای کی برخه نه وه اخستی ځکه دغه مرحوم د دریو کلونو دپاره د مرحوم فخر المشائخ صاحب په امر او اراده په مدرسه کی د شیخ الحدیث په حیث تشریف درلود او د علمی او تصوفی علومو د پرمختګ دپاره ئې د قدر ور خدمتونه وکړل، په مدرسه کی د دغه د تدریس موده دری کلونه (۱۳۲۰، ۱۳۲۶، ۱۳۲۷) ؤ. د قلعه بلند مرحوم مولوی صاحب چه د افغانستان زیاتره خلک دغه د نوم سره اشنا دی یو متبحر عالم ؤ او د افغانستان د استقلال په جهاد کی ئې د ټکاب د مرحوم شیخ الاسلام صاحب سره ګډون درلود او په (۱۳۴۷) هجری لمریز کال د پروان د بګرام په قلعه بلند کی وفات شو او د دغه په جنازه کی دلسو زرو څخه زیات د علم، ادب او تصوف خاوندانو برخه اخستی وه او د قلعه بلند د مدرسی او جامع جومات په صحنه کی دفن شو.

بل عالم چه تقریبًا د مدرسی سره قدم په قدم په حرکت کی ؤ او د حمیدیه شریفیه د مدرسی له شروع څخه د خپل عمر ترپایه په دغه مدرسه کی د مدرس په حیث وظیفه درلوده دغه مولوی عبدالعزیز صاحب دی چه په حاجی مولوی صاحب ئې شهرت درلود او د ټکاب د مشوانی د تربیې او د متبحرو عالمانو څخه ګڼل کیده. نوموړی د مبارکی مدرسی د رسالت په لارکی په زړه پوری خدمتونه کړی او د علم د پرمینان ئې

مستفيد کړي دي او کله چه وفات شو نو د مشواڼي په قريه کي دفن کړے شو۔

مولوي عبدالواحد صاحب چه د پنجشير دري مولوي صاحب مشهور ؤ او محکي موله هغۀ څخه يادونه کړي د څه وخت د پاره د حميديه شريفيه په مدرسه کي د مدرس په حيث وظيفه ادا کړي او بيا ئې پنجشير ته تشريف وړي او ستون شوي دي او هلته ئې خپل تدريس ته دوام ورکړي دي۔

مرحوم مولوي باز محمد صاحب د نکاب او سپد ونکي هم د يوي مودي پوري په مدرسه کي د مدرس په حيث وظيفه درلوده او بيا په دارالعلوم او د شرعياتو په پوهنځي کي د استاذيه د مقام خاوند شو۔

مولوي محمد امان مشهور په خان مولوي صاحب د هيواد د نوميالو عالما نو څخه ؤ او نوموړي د حميديه شريفيه د مدرسي په جوړولو او تقويه کولو کي ډېر هلي ځلي کړي دي او د څه مودي د پاره د مدرسي اداره هم ورپه غاړه وه۔ هغه يو درد لرونکي عالم ؤ او د مدرسي د ځنو مضمونو په تدريس سربېره د مدرسي د سويي په لوړولو او د تبليغ له لاري د افغانستان په نورو برخوکي د هغي په معرفي کولو کي چه لوي لاس ئې درلوده زيات کوښښونه کړي دي او بنا ئې چه د هغه د غه هلي ځلي له يادونه و بيستل شي او بل دا چه هغه د پاک قرآن حافظ او د يوناني طب عالم هم ؤ۔ نوموړي په (۱۳۰۷) هجري لمريز کال د کمونستي کودتا څخه وروسته زنداني شو او لا تر اوسه (۱۳۶۲) د هغه پته معلومه نده۔ او زيات گمان شته چه نوموړي په شهادت

رسیدلی دی. (انا لله وانا الیه راجعون)

بل مولوی لطف الله صاحب دی چه په میا مولوی صاحب یاد یږی
او په مدرسی او علمی نکته سنجی کی د او سنی محققینو له جملی څخه کڼل کیږ ه.

میا مولوی صاحب دوهم ځل بیا د پارلمان په غړیتوب و ټاکل شو
او د حمیدیه شریفیه د سابقه و مدرسینو له جملی څخه و. نوموړی
د ننګاب د میاخیلو په قریه کی وفات شوی او د خپل محترم پلار میا
جوان آغا تر څنګه چه د هیواد له علمی شخصیتونو او د صوفیانو له ډلی
څخه و او د ننګاب او د افغانستان د نورو ځایونو د خلکو د اعتقاد وړ
شخصیت و. دفن شوی دی.

بل د هیواد له علمی شخصیتونو څخه چه د حمیدیه شریفیه په مدرسه
کی د مدرس په حیث وظیفه سرته رسولی هغه مرحوم مولوی فضل قادر
صاحب دی. نوموړی څو کلونه په دغه مدرسه کی په تدریس سره تیر
کړی او بیا ئی د کابل د فاضل بیګ مدرسی ته تشریف وړی او بیا په هم دغه
ځای کی وفات شوی دی.

بل مولوی صاحب مشعل الدین دی چه د حمیدیه شریفیه د مدرسی
استاذ و او بیا چه بندی شو نو تر ننه پوری د هغه درک معلوم نه دی.

بل مولوی سمیع الله صاحب دی چه دی هم د دغی مدرسی استاذ و
او کوم وخت چه ملحدو روسانو د افغانستان په اسلامی هیواد تیری
وکړ نو په مقدس جهاد کی ئی ګډون وکړ.

سربیره په دغه عالمانو نور علمی شخصیتونه هم و چه هغوی به

دغه مدرسه کې د استاذ په حیث وظیفه درلوده او علمي شخصیتونه ئې روزلي دي.

کله چه د حمیدیه شریفیه د مدرسې په باب د مرحوم فخرالمشائخ د علمي خدمتونو یادونه کېږي. دا هم باید وویل شي چه د تګاب، کاپیسا او پروان دین دوستو خلکو د دغې مدرسې د رسالت په سرته رسولو کې هر ډول مرستې کړي دي او په هر ډېر اخلاص او صداقت ئې د (۳۴) کلونو په موده کې د علم او تصوف د دغې مدرسې چراغ روښانه ساتلي دي.

# د مدرسې د طالبانو اعاشه، هستوګنه او درس ښوونه

د حمیدیه شریفیه مدرسه نه یوازې مدرسانو ته ځای ورکړی و بلکه طالبان ئې هم د لیلیه په ډول منل او طالبانو د پاره ئې د هستوګنې خونې، جامې، خوراک او نور ضروري شیان برابرول. مدرسه د خانقاه څخه جلا دیوي اداري لخوا اداره کېدله او دغه اداره د مدرسې د طالبانو د پاره غذا برابروله. د طالبانو له جملې څخه هغه کسان چه د اطراف په جوماتونو کې د امام په حیث متاکل کېدل د غو راز کسانو د احق درلود چه د مدرسې له خونو څخه د مطالعې د مرکز په حیث استفاده وکړي ولې د هغو غذا به د مقتدیانو لخوا برابریدله.

د مدرسي طالبان په حاضرۍ سره مقيد ؤ او د درسي کال په پای کې ئې کلنۍ ازموينه درلوده، دغه ازموينه د هغو د ارتقاء د پاره د علمي کتابونو له حيثه کمزوره وه. البته په مدرسه کې د صنف بندۍ طريقه نه وه او د افغانستان درسمي مدرسو لکه د کابل دارالعلوم عربيه، د ابوحنيفې مدرسه، د نجم المدارس مدرسه، او د هرات فخرالمدارس د مدرسي په شان نه وه بلکه په دغې مدرسه کې تدريس په دې ډول ؤ چه مدرس به د درسي ساعت په پای کې له خپل ځای څخه حرکت نه کاوه بلکه طالبان ؤ چه د درسي ساعت په تبديلي سره به ديوه مدرس څخه بل مدرس ته او ديوه درس ځای څخه بل درس ځای ته تلل او خپل درسونه به ئې اخستل. او دا چه طالبانو په دې سره چه ديوه مدرس څخه بل مدرس ته تلل او دهر مدرس به په خپل ځای کې ناست ؤ. دغه تکليف سره مخامخ کېدل ولې په دغه صورت کې به د مدرس حيثيت ښه ساتل کېده او دغه وضع به د هغه په احترام تماميدله.

د حميديه شريفيه په مدرسه کې بې له کوم تبعيض او توپيره د افغانستان د ټولو ولايتونو طالبان منل کېدل. په مدرسه کې د طالبانو صحي حالت ته توجه کېدله يعنې کله چه به يو طالب ناروغ شو نو دغه ناروغ طالب به د مدرسي لخوا د تکاب روغتون ته معرفي کېده او موظف ډاکټر به د هغه علاج او تداوي کوله.

په مدرسه کې درسي ساعت (۶۰) دقيقې يعنې پوره يو ساعت ؤ.

او د څلورو درسي ساعتونو په منځکې شل دقیقې د تفریح دپاره وي او د ماسپښین په یوه بجه د درسي ساعتونو دپای ته رسېدلو اعلان کېده او د ماسپښین د لمانځه څخه وروسته مدرسانو او طالبانو غرمې ډوډۍ خوړله. او بیا په دري بجو مطالعه پیل کیدله. کله به داسې هم کېده چه ځنو مدرسانو به د درسي ساعتونو څخه دباندې طالبانو ته درس ورکاوه او دغه ډول تدریس د درسي پروګرام څخه نه وُ او دغه ډول تدریس به زیاتره د هغو طالبانو دپاره وُ چه هغوی به د مدرسې درسي محصلانو څخه نه وُ بلکه دغه ډول طالبانو هسې د رلوده چه د عالمانو د علم څخه مستفید او مستفیض شي او خپله علمي سویه بنه او لوړه کړي او استاذانو به هم دغه ډول تدریس ته په ډېره خوښۍ حاضرېدل او طالبانو ته به ئې علمي ښوونې کولې.

د مطالعې پروګرام د مدرسې په ادامه فضاکې چه بې داوبو د شرشرې آواز څخه بل څه نه اورېده کېده د شپې تر دولسو بجو او یا تر یوې بجې دوام کاوه، دغه پروګرام کله کله د مدرسې د ادارې له خوا اداره کېده او چاچه له دغه پروګروام څخه مخالفت کاوه هغه ته به مقصر کتل کېده او بیا به ورته نصیحت او توصیه کېدله. په جماعت د لمانځه اداکولو ته حاضرېدل هم ضروري کتل کېده او په دغه باب څه تعقیب نه وُ ځکه طالبان د پوهې او تقوی خاوندان او په جماعت دلمانځه په اهمیت او فضیلت ښه پوه وُ تردې چه ځنو طالبانو به شپه کې د تهجد لمونځ هم کاوه. د مدرسې د طالبانو، د قرآن کریم د قاریانو، د

خانقاه د شیخانو، د جومات د دائمي مقتدیانو او د لرې ځایونو کسانو او زیارت کوونکو په جماعت لمونځ کول چه د مرحوم فخرالمشائخ په امامت سره به ؤ د یوه خاص کیف او تأثیر لرونکي ؤ البته هغو کسانو چه د غه ډول غونډې او محفلونه ئې لیدلي او د جماعت په لمانځه کې ئې ګډون کړي دی، دوی به پوهیږي چه د هغو لمونځونو کیفیت څرنګه ؤ؟ او هغه صفائي او ښکلا او نورانیت چه د مرحوم میا ګل صاحب په امامت کې مشاهده کېدل د څرنګه کیفیت لرونکي ؤ؟

د مدرسي طالبانو په خپل معصومانه شکل او صورت او اخلاص چه د خپل دین، علم او ادب او اسلامي ثقافت سره ښودل. د غه ځای ته خاص رونق ورکاوه. د مدرسي زیاتره طالبان به د اسې کسان ؤ چه هغو به د ابتدائي او متوسطه دوروديني، عربي او فلسفي علوم د هیواد په نورو مدرسوکی زده کړي ؤ او بیا به دوئ د دیني او علمي عمده ؤ کتابونو دویلو او زده کولو او د حدیث د دورې او د استاذې د اختصاصي علوموڅخه د استفادې کولو په غرض د حمیدیه په مبارکې مدرسي کې شاملیدل او له د غه ادب ځای څخه به ئې د اسلامي علومو د فراغت سند ترلاسه کول. په کال کې به یوځل د دستاربندۍ محفل جوړیده او د غه محفل ته به په سوونو عالمان او د قرآن کریم حافظان بلل کېدل او هغو ته به موقع ورکول کېدله څو د مدرسي د فارغانو په سربانديٰ د پګړې ترلو په مراسموکې برخه واخلي او د پګړې ترلو انتظار ترلاسه کړي ولي د پګړې ورستې ول به د مرحوم میاګل صاحب په مبارک لاس د فارغانو

له سرڅخه تناوېده او ترل کېده او ورته به ئې مبارکې وېله او د اسلامي خدمت په باب ئې ورته توصیه کوله.

د پگړې تړلو مراسم به عادتاً د جمعې د لمانځه څخه وروسته د تکاب په جامع جومات کې چه د قرآن کریم ختم به هم کېده سرته رسېده او دغه له فیضه ډک مجلس به د مرحوم فخرالمشائخ په مشرۍ سره و. او شهادتنامې به د مجلس د ګډون کوونکو لخوا د مطالعې او غور لاندې ېنولې کېدلې او شهادتنامې به بیا ځې استاذانو امضاء کولې او په پای کې به مرحوم فخرالمشائخ خپله امضاء کوله او په خپلې امضاء سره به ئې شهادتنامې ته د علمي حیثیت اعتبار بخښل. د مدرسې شهادتنامې د معنوي امتیازاتو لرونکې وې او د افغانستان د ټولو خلکو په نزد د سنه اعتبار ور وې او د شهادتنامې خاوندان د عسکري خدمت څخه معاف و او شهادتنامې د دولتي دیني مدرسو د شهادتنامې سره برابري کوله.

**دارالحفاظ** د حمیدیه د مبارکې مدرسې ترڅنګه د قرآن کریم د حفظ دپاره دارالحفاظ موجود و چه فارغان ئې د مدرسې د فارغانو په شان د دستاربندۍ د امتیازاتو لرونکي و دارالحفاظ د مدرسې په نسبت تاریخي سابقه درلوده او د شیخ الاسلام (رحمته الله علیه) د مزار ترڅنګه جوړ شوی او له پخوا څخه ئې فعالیت کړی دی او د قرآن کریم ډېر حافظان ئې جامعې ته وړاندې کړي دي ولې دا داري له حیثه په مدرسې تړل شوی و.

د مدرسې د تدریس شروع په دوبي کې د سبا (۷) بجو او په ژمي کې

د سباله (۸). بجو د قرآن کریم د حفظ په تدریس سره د هغو کسانو دپاره چه د بیداره زړونو او د اوریدو نکو غوږونو خاوندان ؤ د پرپه زړهٔ پوری ؤ یعنی له یوی خوا د قرآن کریم د حافظانو مبارک اوازونه او له بلی خوا د مدرسانو د تدریس او د طالبانو د هلهلی اوازونه د یوه خاص کیفیت او د جم او جوش د حالت لرونکی ؤ او هم په دغه وخت په جومات کی د خانقاه د شیخانو او نورو اشراقی لمونځونه د مسلمانیه او ترین ښی منظری جوړولی۔

په مدرسه کی یوه کتابخانه هم موجود وه او دغه کتابخانه د مدرسی د منتظم لخوا اداره کېدله او د درسی کتابونو د تحویلخانی حیثیت ئی درلود او دا په نظر کی ؤ چه کتابخانه د طالبانو او نورو علاقه لرونکو د مطالعی دپاره یوه بشپړه کتابخانه شی او د استفادی ساحه ئی پراخه شی ولی دغه هیله سرته ونه رسېدله بلکه د ملحد حکومت دلاسه دروازه ئی پوری شوه او له منځه لاړه۔

د جمعی په شپو کی تصوفی غونډی هم کېدلی، او په دغو غونډو کی درود ویل کېده. او طالبانو په کی ګډون کاوه۔

دا باید وویل شی چه د تکاب په منطقه کی له ډیرو کلونو څخه یو بل علمی مجلس هم رواج درلود او هغه دا چه طالبان به د جمعی په ورځو کی سره غونډ شول او په خپلو منځو کی به ئی علمی مباحثی کولی او پوښتنی او ځوابونه به د علمی مسابقی په شکل سره ؤ۔

یل طالبانو به کله کله د علمی ټولنی په نامه د وعظ او تبلیغ هلی ځلی

کولی او هر یوه ته موقع ورکول کیده چه د منبر د پاسه وعظ وکړی او د علمی کمال ترڅنګه د وعظ مهارت او کمال هم ترلاسه کړی.

دا و د کتاب د حمید یه شریفیه د مبارکی مدرسی په باب اجمالی معلومات چه د خپل علمی رسالت په لاره کی ئی ترسرکړی دی او دا باید هم وویل شی چه د مرحوم میاګل صاحب د هیلو څخه یوه هیله داوه چه عالمان او د طریقت خاوندان سره نژدے او پخپلو منځو کی څه فاصله ونلری او همدغه حقیقت دی چه هغه د خپل محترم پلار مرحوم شیخ الاسلام (رحمته الله علیه) په ژوندانه کی دا کوښښ وکړچه عالمان که له یوے خوا د تدریس وظیفه په غاړه لری له بلی خوا د طریقت دارشاد وظیفه هم ترسره کړی. یعنی که یو شخص په خلکوکی د استاذ، امام او پیشوا په حیث وظیفه لری باید د مرشد په حیث هم خلقو ته د طریقت ښودنه وکړی او په دی ډول په عالمانوکی د معنوی ټیادت ټول خصوصیات جمع او د خلکو دپاره د هر ډول خیراو فیض مصدر وګرځی.

البته د حمید یه شریفیه د مبارکی مدرسی ترڅنګه د دارالحفاظ او خانقاه په موجودیت سره د عالمانو او د مشائخو ترمنځه د نژدیوالی موضوع په ښه توګه مطالعه کولای شو. عالمان او د مدرسے طالبان د علمی رسالت په ادا کولو کی اهل طریقت ته نژدی او اهل ذکر او طریقت عالمانو ته نژدی ؤ او د دواړو ډلو ترمنځه کومه فاصله موجوده نه وه. او دا چه او ریدل شوی ؤ چه اهل العلم و اهل التصوف ترمنځه څه

اختلاف موجود ؤ، ولے مرحوم فخرالمشائخ د خپل علمی خاص موقف په اساس د غه راز اختلاف ته موقع ورنکړه بلکه د اختلاف او تفرقې ټول عوامل ئې له منځه وېوړل. هغکی وویل شوچه په ځنوجوماتونوکی د عبادت د ادا کولو سره د تصوفی رسالت او د دینی علومو د تدریس نسبت مرحوم فخرالمشائخ ته شوی مرحوم د غه وظیفه په افغانستان کی د اسلامی خدمت په منظور په پوره مینې او علاقه ترسره کړی ده. او کله چه ئې پېښور ته هجرت وکړ د پېښور متدین خلک ئې تشویق کړل. چه د عبادت ځایونه اباد شی او په ښه توګه دینی شعایر ترسره شي هماغه وُچه د مرحوم په ښه توجه سره د پېښور په اکبرپوره کی د کهجوری جامع جومات چه د ګڼلو ریمو پیړیو څخه د یوی خرابۍ شکل ئې غوره کړی ؤ د هغه ځای د متدینو خلکو په ښو هلو ځلو او د مرحوم فخرالمشائخ په توصیه سره آباد او بیا د دغه مرحوم له خوا په ۱۹۸۰/۱۱/۱۴ میلادی کال کی افتتاح شو.

په د غه مناسبت د د غه ځای د خلکو څخه یو مشر په پښتو ژبه شعر ویلی چه دلته د هغو د شعر یو بیت نقل کیږی. ــه

• نن راغلی میاګل جان یو عظیم الشان هستی ده
جوړه دلته کی یارانو نن د حق سرپرستی ده

---

# دویم فصل

## د مرحوم فخر المشائخ تصوّفی ژوند

مرحوم میا گل صاحب د تصوفی مراحلو په لاره او د مشیخت د وجا یبو په ادا کولو کی د دا سی عملونو مصدر گرځید لی چه د غه ټول په دغه لنډه رساله کی نه ځایږی او هم د تصوف د ناپایابه بحر څخه یادونه زیات تفصیل او بیان ته ضرورت لری او هغه څه چه په اجمال سره باید یاد شی هغه دا چه هغه تصوف چه په عشق او تصوفی جذبې متکی وی او د هغه چا سلوک چه په ظاهری علوموکی وارد وی او ورغواړی چه د تصوف د ناپایابه بحر څخه څه د ځان سره ولری د تکلفی تصوف او د هغه عبادت څخه چه درونډ تمامیږی ښکاره فرق لری. قرآن کریم دا سی فرمائی: وانها لکبیرة الا علی الخشعین " لمونځ درونډ دی مگر په هغو کسانو درونډ نه دی چه هغوی د خشوع او تواضع خاوندان دی.

له دی څخه داپوهیدای شی چه په عشق او تواضع سره د عباداتو اداکول یو حالت لری او بل له عشق او تواضع بل حالت لری. د تصوف خاوندان د تصوفی شور او جذبې د درک کولو په وخت کی دا سی حالت نه

د تکلیف موضوع د هغو په باب له منځه ځي او دا په دې معنی سره چه د عباداتو ادا کول د غیر صوفي د پاره تکلیف دی، د طبیعي حالت څخه غیرطبیعي حالت ته ګرځیدل کېږي ولې عبادت د تصوف د خاوندانو د پاره او د هغو کسانو د پاره چه د سلوک مراحل ئې طی کړي وي قوت دی او د روح غذا ده. رسید لی صوفي هیڅکله په عبادت کې د تکلیف احساس نه کوی بلکه د غیر عبادت حالت د سالک صوفي د پاره د تکلیف او مشقت حالت او غیر عادي حالت دی. دا هم باید وویل شي چه د غه تصوفي مکتب د د غو امتیازاتو سره چه اوس په نظر راځي د سعادت په وخت کې موجود نه ؤ او د تصوف د نامه سره آشنائي نه وه ولې د اصحاب صفه حالات او هغه ټول چه د تصوف علم د غایې په حیث قبول کړي د صفایې او پاکې لرونکي دي نو مونږ ویلای شو چه د تصوف مصداق په د غه وخت موجود او هم د تصوف په باب قصې شته چه محترم صوفیان به ډېرې ورځې وږي ؤ او په عبادت به مشغول ؤ. او څنو د ګوښه توب او لرې والي حالت غوره کړی ؤ او غرونو ته تللي. دا هم ثابت شو چه په همد غه عبادت هغوی ژوندي پاتې کېدل او روحي اطمینان ورحاصلیده او جسمي غوښتنې ئې لکه خوراک او څښناک د روحي غوښتنو د تأثیر لاندې راوستي وې او له غذا څخه ئې د نورو د غذا په نسبت سلمه برخه استفاده نه کوله. د مثال په ډول صوفي هغه عابد ؤ چه یوه دانه خرمائې د څو ورځو غذا ګرځولې وه. اګر که د د غه حالت یادونه د هغو کسانو د پاره چه د ژوندي زړه

خاوندان نه دی مبالغه او بیا د هغو کسانو په نزد چه په طبي توانینو او د حفظ الصحي په مقرراتو ولاړ دی بیخي دروغ ګڼل کیږی ولی هغه مو چه د محترمو صوفیانو څخه په تواتر سره اوریدلی دی موږ د دی معتقد ګرځوی چه د غه ډول حکایتونه له مبالغی څخه لری وی بلکه صوفیان داسی کسان دی چه د قرآن کریم د ( الا بذکر الله تطمئن القلوب ) د وینا سره سم چه په الهی ذکر سره د زړونو اطمینان پیدا کیږی. خپل ژوند ئې د معنوی انتظام لاندی راوستی او په د غه ذکر ئې د زړونو اطمینان وسیله ګرځولی او د جسم د خواهشونو څخه ئې په هماغه اندازه اکتفا کړی چه په هغی سره د ژوند ضرورت تأمین شی.

که څوک خلک داسی حکایتونه او داسی یادونی خیالات ګڼي باید هغو ته وویل شی چه د غه مخصوص حالت هغه کسان درک کولی شی چه د هغه په لاره کې ئې قدم ایښی وی او هغه څه چه موږ خدائ د ولیانو څخه په تواتر سره اوریدلی په یقیني ډول په واقعیت باندی بنا دی او داسی نشی کیدلی چه د اوهامو په اتصال سره هغه اوهام وګڼل شی.

له د غه اجمالی مقدمی څخه وروسته باید وویل شی : مرحوم میا ګل صاحب د ځوانۍ له وخت څخه تر مرینې پوری د عبادت سره داسی عادی ؤ چه د عبادت په ترک او یا د داسی کار په مشغولیدلو چه هغه شرعاً او تصوفاً عبادت نه ګڼل کیده درته د ناکراری حالت پیدا کیده او هغه کسان چه حقیقتاً د هغه سره نژدی ؤ هغو به د د غه ډول ناکراری بنه

ادراک کاوه.

دعبادت د مجلسونو څخه پرته داسې مجلسونه هم شته چه عبادت ته نژدې وي لکه علمي مجلسونه، د مدارسو او جوماتونو د ښتو الینو دلو مجلسونه، د وعظ او تبلیغ مجلسونه او دجهاد په باب مجلسونه اونور.

په دغه ډول مجلسونو کې هغه ناکارۍ چه دذکر په ترک سره په نظر راتله په فخرالمشائخ کې نه مشاهده کېدله او دیل ئې ښکاره دی چه دغه ډول مجلسونه یا عبادت ګڼل کېدل او یا عبادت ته نژدې دی او د اطمینان حالت ته نژدې دی او پرته له دې څخه کله چه به له داسې موضوعاتو څخه یادونه کېدله چه هغه د تصوفي رسالت څخه بېخي مخالف وي په دغه حالت کې انسان کولای شو چه په لږ څېر کېدلو سره د ناکارۍ اندازه او دعبادت څخه د هغه لوړ والی اټکل کړي.

مرحوم فخرالمشائخ به کوم وخت چه ټول به او ده ډېر ضعیف جسم ولیش وو او په سجاده (لمونځي) باندې د نفل او تهجد دکولو په حالت کې به لیدهٔ کېده. ذکر، تلاوت، تسبیح، د خدای په حضور کې راز او نیاز، اوراد، درود د لائل الخیرات او قصیدې هر یو د پروګرام سره سم ترسره کېدل.

هغو کسانو چه د سبا لمونځونه د جناب میا ګل صاحب په امامت اداکړي او په تصوفي ذوق سره ئې هغه لیدلی ښه پوهیدلی چه هغه ټول نورانیت او وقار هغه جذبه او هغه تاثیر څه حالت درلود او د هغه دشپې ژوندې لرلو حنجره د تصرف له کوم ځای څخه خپور کاوه او د هغه وخت د سلوک د کوم حالت یادونکی وه.

مقتدیانو دزړه په غوږونو اوریدل اود قراعت متابعت ئې کاوه ولی دعلم خاوندانو دآیتونو د فواصلو او معانیو سره کار درلود، حافظانو کوښښ کاوه چه د قرأت دادا کولو په وخت کی د تجوید قوانینوته متوجه شی مګر دعشق او جذبې خوړیدونکو او سلوک په څپو کی ډوبیدونکو بنه غور کاوه چه دغه اواز له کوم ځای څخه دی؟ له کومې منبع څخه شروع شوی؟ او تېری کسان کوم شی ته راغواړی؟.

هغه حنجره کومه عادی حنجره نه وه، حنجرې یې کولی، رازونه ئې څرګندول او د داخلی عشق او سوز له پیمانې اود شپې ژوندیه ساتلود راز او نیاز څخه ئې خبر ورکاوه. کوم کسان چه د ولیسنو زړونو خاوندان و، هغوی پوهیدل چه هغه د قرأت دادا کولو په وخت کی د حال په ژبه څه وائی؟ د سیالوڅ اداکیده او سیاګل صاحب دخپل عبادت حجرې ته ورته او د هغه د نژدی متعلقینو او منسوبینو د حکایت په اساس په سپه او ورځ کی د هغه استراحت دلمړنتلو د وخت څخه داشراق د لمانځه دادا کولو تروخته ؤ.

فخرالمشائخ دغه کمال له خپل محترم پلار جناب شیخ الاسلام صاحب څخه زده کړی او هغه د هډی صاحب ملا نجم الدین (رحمة الله علیه) څخه او د هډی صاحب د سوات صاحب څخه فیض اخستی دی او دغه سلسله ترآخره داسی کسانو ته نه رسیږی چه هغوی د معرفت دغه څراغ او د سلوک دغه نور روښان ساتلی دی.

دردم مولینا جلال الدین بلخی چه د تصرف د سلسلی د پیشوایانو

شیخ ؤ داسې وائي او د مرشد ولي د متابعت بیان کوي. ــه

سایهٔ یزدان بود بندهٔ خدا
مردهٔ این عالم وزندهٔ خدا
دامن او گیر زوتر بیگمان
تا رهی از آفت آخر زمان
کیف مدالظل نقش اولیاء است
کو دلیل نور خورشید خدا است
اندرین وادی مرو بی این دلیل
لا احب الافلین گو چون خلیل

فخرالمشائخ تصوفي ژوند لرهٔ د ول عیش ډک ژوند ځکه غوره گانهٔ او له همدې امله ئې په دولت کې رسمې کار دنه نهٔ منلې. کله چه د وخت حکومت هغه ته د جمعیة العلماء د ریاست مقام چه یو لوړ علمي مقام دی پیشنهاد کړ هغه دغه مقام ونه مانهٔ ځکه هغه پوهیده چه د هغه وخت د جمعیة العلماء د ساحې شیخ د بانډې د برکتو د دې نو دغه مقام ته ئې د وخت علامه مرحوم ملا بزرگ صاحب معرفي کړ او دغه نومړي تر یو وخته د جمعیة العلماء د رئیس په حیث کار وکړ. البته د مرحوم فخرالمشائخ د رسمي وظیفې نه منل زمونږ پام د ابراهیم ادهم (رحمته الله علیه) تعې ته چې افغاني الاصل صوفي او د بلخ د محترمو شخصیتونو څخه ؤ راگرځوي او مونږ لپاره د هغه د قصې داسې بیان کوي. ــه

برسر تخت شنید آن نیکنام
طقطقی وهای وهوی شب زبام
گام های تند بر بام سرا
گفت با خود اینچنین زهره کرا

ابراهیم ادهم پر بام باندی د اواز په اوریدلو سره اوضاعوته متوجه کیږی او اواز کوی چه په دغه تپه تیاره شپه کی پر بام باندی څوک دی ؟ اوهی نشته کمان چه بل شی وی. پرښتو دادمیانو په شکل له بام څخه داسی ځواب ورکړچه مونږ اوښ ورک کړی دی: ابراهیم ادهم په تعجب سره وائی. اوښ پر بام څه کوی ؟ هغوی په ځواب کی وائی: په دا سی حال کی چه ته پر تخت او په جاه اوجلال کی یی څرنګه کولای شی چه د تصوف دعوی منځ ته راوړی ؟!

پس بگفتندش که تو بر تخت جاه
چون همی جوئی ملاقات اله

ابراهیم د دغه غږ په اوریدلو سره پوه شو چه سلوک وتصوفی سلوک په لاره کی د جاه او جلال څخه د کوښښ کیدلو غوښتنه کوی نود کوښښ تو ب لاره ئې ونیوله او له جاه اوجلال څخه کوښښ کیدلو ته ئې ترجیح ورکړه

دا اشتباه دی وند شی چه مونږ دلته د فخر المشائخ او ابراهیم ادهم په منځکی له مقایسی څخه کار اخستی دی ځکه د ابراهیم ادهم مقام د پر لوړ او د صوفیانو له لومړنی ولی څخه شمیرل کیږی د دغی قصی له بیان څخه زمونږ مقصد دادی چه د صوفیانو په سلوک کی تو پیرونه شته

ځنې له هغو څخه کوښنه توب خوښوي او دوئ نه یواځې له دولتي مقامونو څخه تېښته کوي بلکه دوی د خلکو سره هم ګډون نکوي. دځنو نورو عقیده داده چه د رسمي وظیفو منل چه دا سلام د مقدس دین د خدمت په منظور وي د تصوف طریقې سره مخالفت نلري مګر دوی له دې څخه وړاندې قدم پړدي او دا سي وائي: که څوک د دولتي وظایفو څخه ځان وساتي او پوه شي چه د هغه په ګوښه ځان ساتلو سره نورکسان به د غه وظیفې دپاره وړاندې شي چه هغوی د اهلیت وړ نه وي او د خلقو د اذیت سبب ګرځي په دغه وخت کې د وظیفې منل واجب او له منلو څخه ئې مخ اړول ګناه ده.

د غه نظریه د فقهاؤ د نظریې سره چه د قضا په باب ده موافقه ده څوکه چیرې عالم د قضا دپاره وبلل شي او هغه پوه شي که چیرې هغه د غه وظیفه ونه مني نو بیو دا سې څوک به ورته وبلل شي چه هغه اهل ئې نه وي او هغه ضرر رسونکی وي نو په د غه حالت کې د قضا منل د غه عالم ته حتمي او واجب دي.

مرحوم میا ګل صاحب پر دا سې کسانو لطف کاوه چه هغوی د عزت او وقار خاوندان ؤ ولې د پېښو په سبب هغه قبول ئې د لاسه ورکړل.

په حدیث شریف کې راغلي: "ارحموا ثلاثا: عزیز قوم ذلّ، وغنی قوم افتقر، و عالما یلعب به الجهال". یعنې پر دریو کسانو رحم وکړئ: د قوم معزز چه ذلیل شي، د قوم بډای چه خوار شي، او هغه عالم چه ناپوهان پرې لوبې کوي.

مولانا جلال الدین بلخي په دغه باب دا سي وائي:

گفت پیغمبر که رحم آرید بر | حال من کان غنیا فافتقر
والذی کان عزیزا فاحتقر | او صفیا عالما بین المفر
گفت پیغمبر برین سه گروه | رحم آرید ار ز سنگید و ز کوه
آنکه بعد از عزیزی خوار شد | وان توانگر هم که بی دینار شد
وان سوم آن عالمی کاندر جهان | مبتلا گردد میان ابلهان
زانکه از عزت بخواری آمدن | همچو قطع عضو باشد از بدن

مرحوم میاګل صاحب د تصوف په لاره داسې روان شو چه عبادت، ریاضت او په شریعت باندې عمل کول ئې تصوفي مرحلو ته د رسېدلو وسیله وګڼله او هغه کسان ئې لرې کول چه هغوي به په ظاهره کې په شریعت عمل نکاوه او خلکو د هغو احترام د صوفیانو د لیونو په نامه کاوه او د هغو عمل ئې د شریعت څخه مخالف نه ګڼله او داسې ئې ویل چه هغوي داسې مرتبې ته رسېدلي دي چه هغه د یقین مرحله ده او ددغې مرتبې ګڼل عبادات له منځه وړي. او یا ئې داسې ویل چه هغوي په ظاهره کې د خلکو په منځکې د لمانځه او د نورو عباداتو د ترک په حالت کې دي ولې هیڅوک نه پوهیږي چه هغوي لمونځ کوي.

مرحوم میاګل صاحب په شریعت باندې ټینګښت ئې په اصلي او واقعي او څرګند توګه له دې عقیدې څخه لرې چه شخص جسمًا د لمانځه او روحًا په بل ځای کې وي. ضروري ګڼل او داسې ئې ویل: بنده په عباداتو کې چه جسمي تکلیف سره مامور شوی او نه بنائي د هغو کسانو عمل ته چه په مختلفو نومونو د شریعت د تطبیق څخه لرې پاتې دي. توجیه وکړي.

مرحوم د همدې مفکورې په اساس یو وخت یو شخص ته د عتاب او جزا لاندې ونیو چې دیوې ډلې سره د صوفي او ملنګ په نامه دخدای سره علاقه ښودله او دهغه د شاو خوا څه ناڅه حلقه وهلې وه. دهغه دغه دیني او د شریعت سره برابر جرأت دهغه شخص دحلقې منکرې خپه کړل ولې مرحوم میاګل صاحب په خپل دغه نظر ټینګار درلود او ددې ډپاره چې لا زیات د فتنې د پیدا کېدلو مخه ونیوله شي نوله مولوي عبدالحنان (رحمت الله علیه) څخه ئې وغوښتل چې په دغه باب خپل شرعي او دیني نظر ولیکي. مرحوم مولوي عبدالمنان (مشهور د پنجشیر په مولوي صاحب) یوه رساله ولیکله چې هغه دعلمي او شرعي دلائلو په لرلو سره له هر حیثه د اهمیت او اعتبار وړ وه ولې نه پوهیږو چې د زمانې پېښو دهغې بې چاپې رسالې سره څه وکړل او اوس به د چاسره وي؟ که دغه رساله یو وخت د علم او معرفت د تږو په لاس راشي او چاپه شي نو دابه یو لوی خدمت وي چې د علم د خپرولو او د تصوف د حقیقت د معرفي کولو په لاره سرته رسیږي.

دغه رساله تقریباً (۵۶) کاله مخکې (په ۱۳۱۷ لمریز کال کې) نوشته شوې وه او مرحوم مولوي صاحب نه غوښتل چې دغه رساله له منځه لاړه شي بلکه خپلو دوستانو او شاګردانو ته ئې هر وخت ویل چې هغه ولیکي او ورڅخه استفاده وشي. دا چې دغه رساله ولې هغه وخت چاپه نه شوه نو دلائل موجود ؤ چې یوله هغو دلیلو څخه دادې چې په هغه وخت کې د چاپولو کافي وسایل موجود نه ؤ چې هغه چاپه شوې وي نو همدا سبب دی چې هغه له چاپه پاتې شوې ده دداسې رسالو او همدارنګه د. قادریه، نقشبندیه،

سهروردیه اوچشتیه. د څلورطریقوپه باب د رسالو دچاپولو دمفکوری پیدا کیدل چه په هغوکی څلورطریقی داوړادو دکیفیت اود هغو د جزئیاتو دتطبیق سره بیانی شوی د مرحوم فخرالمشائخ صاحب له برکاتو څخه ممکن کیږی او هغه هروخت سعی کوله چه داسی وسایل پیدا شی

خلکوته داهل تصوف دمشیخت طریقی معرفی شی او مسلمانان دغو طریقوته و بلل شی. تصوف د هغو کسانوپه نزد. چه په ساحه کی ئی داخل نه وی اود ذوق او مشاهداتو خاوندان نه ګڼل کیږی اود تصوفی تجربو څخه بی خبره وی. هغه معارف او معلومات دی چه په هغوکی د عادی خلکو د پوهی څخه پورته بی له رموزو او اسرارو څخه بل څه نه لیدل کیږی او د داسی کسانو عقلونه چه د تصوف په ساحه کی وارد او داخل نه دی د تصوف د لوړو قضایاؤ، مقاماتو او احوالو له ادراکولو څخه په حیرانتیا او تردد کی وی او نشی کولای چه د حقائقو واقعیت ته ورسیږی.

په فکری ساحوکی د تصوف موقعیت داسی دی که دارسطو منطق نشی کولای چه د هغه قضایا د استدلال په ساحه اود صغری او کبری او قیاس په چوکاټ کی داخل کړی نود تطبیقی منطق تجربوی پروګرامونه هم نشی کولای چه د عارفانو د تأملاتو شا او خواته لار پیدا کړی.

عقلی تحلیل هغه وخت پکار یږی چه هلته د عقلی معلوماتو خبره وی او دا چه خبره دی ته ورسیږی چه د عقلی ادراک لاندی نشی راتلای نو ځکه ده چه باید په عجز او ناتوانائی اعتراف وشی.

د پورتنیو دلایلو له مخی په جرأت سره ویل کیږی چه د تصوف اسرارو

او رمزونو درک کول د فلاسفه‌ؤ د لاسه چه په عملي توګه د تصوف څخه بې خبره دي پوره نه ده او که غواړي چه د خپل علمي غرور د ساتلو په غرض د تصوف لوړو ته لاره پيدا کړي او هغه د خپل فلسفي ادراک په ساحه کې راولي نو بې له دې څخه چه اهل تصوف په بله کړي او د هغوی د قضاياؤ په جامه کې په افسانه او خيال پروازۍ ته ورته وې ښکاره کړي بل څه کولای نشي.

تصوفي تجربې چه په هر شکل سره وي او د هر ډول شرايطو لاندې منځ ته راشي نشي کولای چه عقلي معلوماتو سره برابر حرکت وکړي بلکښيا تره وختونو کې له عقل څخه فاصله نيسي. له همدې سببه دی چه ډير پوهان په دې اعتراف کوي چه کوم کسان د ذوق او مشاهداتو خاوندان نه وي دوی هيڅکله د تصوف رمزونو او اسرارو ته لار نشي پيدا کولای او هغه څه چه وائي له تخميني او تقريبي تعبير څخه زيات نه دي او هيڅکله د اعتماد مورد نکرځي.

مونږ بايد ددې انتظار ونه باسو چه زمونږ عقلي قدرت کولای شي چه د تصوف ژورو ته ورسيږي، که څوک وغواړي د عقلي تجربو له مخې د تصوفي انوارو له استفادې څخه لرې د تصوفي قضاياؤ لاره پيدا کړي په هماغه اندازه چه د موضوع د حقيقت سرته د رسيدلو فکر کوي په هماغه اندازه د حقايقو څخه لرې کيږي او ډير څخه فاصله نيسي.

همدا سبب دی چه د تصوف څنو پوهانو داسې ويلي:

د مشاهداتو او مکاشفاتو علم د اشارې علم دی ځکه له مکاشفاتو او مشاهداتو څخه په واقعي او حقيقي توګه تعبير نشي کيدلای او هغوته

د علم یوا ځنې لاره دا ده چه د تصوف وجد او ذوق سره اشنا شو او دروسته له دې څخه درک کولای شو چه د صوفیانو د اقوالو اصلي او واقعي محمل څه دی. د مشهورو صوفیانو څخه سلیمان دارانی داسې وائي: "د صوفي زړه خدای لیدلی" او هرشي چه خدای ئې لیدلی وی هغه نه مري. نو چا چه خدای ولید د هغه زړه دائم او ابدی دی.

دلته مشاهده کوچه عقلي استدلال دغه قضیه نه مني او هم د شریعت ظاهر د سلیمان دارانی ددغه فرمایش او وینا ظاهري معنی او مطابقي مدلول نه مني مګر که څوک د تصوف په حقایقو، رمزونو او اسرادو کې شامل او داخل وی د هغه په نزد دغه کلام په کامل ډول اصلي واقعي او حقیقي معنی لري او هغه عملاً دغه حدیث تطبیق کړي چه د حضرت جبریل علیه السلام ددی پوښتنې چه :

( وما الاحسان؟ ) یعنې احسان څه شی دی؟ په ځواب کې وائي :

"ان تعبد الله کانك تراه، فان لم تکن تراه فانه یراك." احسان دا دی چه د خدای داسې عبادت وکړې چه ګوروکې هغه وینې، او که هغه نه وینې نو یقین ولره چه هغه تا وینې.

باید په عبادا توکې داسې او سې چه هر وخت خپل ځان د رب العالمین په حضور او ددغه لوی ذات په نظرکې بې او د هغه د نظر په مطابق خپل عبادات د ټولو ادابو په مراعات کولو سره ئې په ځای کړې.

بل صوفي داسې وائې: "الصوفي فان عن اوصافه باقي فی اوصاف المحبوب الحق" صوفي له خپلو اوصافو څخه خالي او د حق محبوب په اوصافو کې باقي دی.

کله چه دغه وینا دعقلي استدلال له مخې د غور لاندې ونیسو نو د منلو لاره نۀ نشته مګر صاحب حال صوفي او حقایقو، رمزونو او مشاهداتو ته رسیدلی سالک بنه پوهیږي چه صوفي څرنګه فاني کیږي؟ تصوف فنا څه ده؟ کوم محت کولای شي چه له ځانه فاني او د حق تعالی په اوصافو کی باقي تصورشي؟

کلاباذي یوله مشهورو صوفیانو څخه په خپل کتاب کی د "التعرف لمذهب اهل التصوف" دعنوان لاندي داسي وائي: "التصوف تصرف ولیس اخذ ولا ردا ولا جدلا". تصوف یو تصرف یعنی د معرفت په اسرارو کی داخلیدل دی او ظاهري اخذ، رد او جدل نه دی.

همدا سبب دی چه هغه بحث او تصوفي تعمق منو او نمونږ په زړونو کی تأثیر کوي چه د حال او ژوندي زړونو د خاوندانو له وینا څخه سرچینه اخلي د دغې یادونې له مخې هغه عقلي استدلال او فزیکي فارمولونه نشي کولای چه د عقل او طبیعت څخه ترشا موضوعات درک او کشف کړي او د نظر د حاکمیت لاندې یې راوړي.

باید وویل شي: که مونږ د اولیاء الله په مناقبو او تاریخ او روحیه هغوی څو ورځې او شپې او څو میاشتي د خوراک او څښاک څخه یې لاس نیولی او عبادت ته یې مخ کړي او د غه عبادت یې د خپل قوت په حیث کملي او عملاً کنټل شوي چه دغه عبادات هغوی یې ژوندي ساتلي دا د ژوندیو زړونو د خاوندانو په نزد کوم عجیبه خبره نه ده. هغه کسان چه اولیاء الله بنه پیژني، هغه کسان چه د اولیاؤ د کراماتو د قضایاؤ سره اړیکه لري او هغه کسانو چه عملاً مشاهده کړي چه د صوفیانو حرکات او سکنات دعادي

او معمولی حالت څخه اوچت دی دوی عقیده کوی چه لوی او قادر خدای کولای شی چه دغه راز خپل خاص بندگان د داسی امتیاز خاوندان کړی او هغوی د ذکر، فکر، وجد او جذبی د رمزونو سره اشنا وگرځوی.
هغه کسان چه منصفانه نظر کوی او په حقایقو کی بی له عناده غور کوی د اسلامی ټولنی د خدمت او د اسلام د مقدس دین د خپرولو په لاره کی هیڅکله له تصوفی ارزښتونو څخه انکار نه کوی، هغوی ښه پوهیږی چه د خدای د بندگانو څخه یوی ډلی و کولای شول چه د تصوفی مشاهداتو په برکت او د کشف او شهود د انوارو او تجلیاتو په رڼا کی د بر کسانو ته د واقعیتونو په لوری وبلل.
د هغه څه په نظر کی نیولو سره چه د تصوف په باب کی وویل شو څرگندیږی چه دغه سلسله له هغی ورځی څخه شروع شوی چه یو شمیر صحابیانو ( رضی الله عنهم ) د اصحاب صفه په نامه شهرت موندلی او په عبادت، زهد او ذکرونو مشغول شوی او د جهاد د حساسو ځایونو څخه پرته د نورو کارونو سره علاقه نه ده نیولی او دغه سلسله د ډیرو پیړیو په اوږدو کی دوام کړی. په هر ځای او هر عصر کی داسی کسان منځ ته راغلل چه د دغه لاره ئی په مخکی ونیوله او د غه تصوفی محفلونه ئی ژوندی ساتلی دی.
له دی څخه هم سترگی نشی پټیدلای چه یو شمیر محدودو کسانو چه په تصوفی رمزونو کی داخل شوی نه و تش د تصوف په نامه وغوښتل څود تصوف نوم بد کړی ولی موږ د غه کسان هیڅکله په

شمیرکی نہ راولو بلکہ هغہ کسان پہ شمیرکی راولو چہ هغوی د واقعیت لہ مخی د تصوف د اصلی لاری څخہ دغی پاکی ساحی تہ داخل شوی او پہ اسلامی شریعت باندی ئې عمل کړی او عمل کوی. تصوف کومہ معما نہ دہ چہ د هغہ معیار معلوم نہ وی بلکہ د هغہ معیار معلوم او هغہ د اسلام مقدس شریعت دی، کہ څنی شیان د تصوف پہ ساحہ کی د غیرمفهومی موضوع پہ حیث پہ نظر راشی کہ د تاویل لارہ ئې موجودہ وی او د اسلام د دین او د شریعت د اساساتو سرہ برابر وی نو ښنہ او کہ نہ نو د منلو وړ نہ دی.

د اسلام شریعت لارہ روښانہ کړی دہ او ښائی د هغہ پہ هدایت سرہ عمل وشی. دغہ یادونہ موپہ دغہ رسالہ کی ضروری وګڼلہ ځکہ د تصوفی شخصیتونو او د طریقت د مرشدانو منل هغہ وخت کیدی شی چہ یځپلہ تصوف ومنل شی.

د تصوف نړۍ او د هغہ مقامات او احوال ډیرہ کتنہ غواړی او پہ هغہ کی د تعصب څخہ لری والی او د زرهاؤ تنو اولیاؤ او د خدای د دوستانو د کارنامو او اوضاعو مطالعہ ضروری دہ.

کہ موږ د مرحوم فخرالمشائخ صاحب څخہ د هغہ تصوفی اړخ لری کړو او یا د هډی د مبارک صاحب او یا د نکاب د مبارک صاحب تصوفی راز او بیان یوطرف کړو نو ضروری نہ دہ چہ د هغہ یادونہ پہ رسالی، مقالی، کتابونو او تالیفاتو سرہ وشی ځکہ هغہ چہ هرخدمت کړی دی هغہ د تصوف پہ ساحہ او د تصوفی انوارو پہ رڼا کی دی او د هغہ

هر علمي او اجتماعي خدمت جهاد او د انګریزانو او روسانو په ضد او مقابل د مبارزینو په صف کې د هغه درېدل او ګډون کول له هماغه ځای څخه سرچینه اخلي چې د اسلامي اصیل تصوف سره سر او کار درلود.

د اسې اولیاء الله او د کراماتو خاوندان او په تېرو شویو پېړیو کې د اسې کسان ؤ چې له یوې خوائې د تصوف څراغ روښان ساتلی، او له بلې خوا د علم په لاره کې او د اچې د مسلمانانو اولاد د مسلمان د ساتل شي نبې علمي لاری ئې مخ ته راوستلي.

مرحوم میاګل صاحب د خدای د دوستانو په هغه صف کې ځای لري چې یوه شیبه هم کرار ناست نه ؤ بلکه په قول او فعل، په نصیحت او لارښوونې په تبلیغ او ارشاد سره ئې د اسلام ثقافت او د هغه تاریخي ارزښتونه ئې د غور راندې نیولي او د هېر شویو ارزښتونو د ژوندي کولو دپاره ئې مهم کارونه سرته رسولي دي.

مرحوم فخرالمشائخ صاحب او د هغه د لارې ملګرو چې هره ورځ به ئې خلک طریقت او د کلمې د تصحیح دپاره بلل نو لومړی به ئې هغوی ته د نصوحې توبې او د بدو لوید و عملونو د پرېښودلو بلنه ورکوله. بیا به ئې هغوی ته د ښو کارونو تلقین وکړ او هغوی به ئې مریدان وګرځول. په حقیقت کې به ئې د هغو لاس ونیوا وله بد بختیو، تردد او د زړه له بې ثباتۍ څخه به ئې وژغورل او هغوی به ئې د اسې لارې ته راوبلل چې په هغې کې به پوره صفائې او ارامتیا، نېکمرغي او نورو ته ضرر نه رسول ؤ.

او س حق لرو ویپوښتو چې د بدعت طریقه چیرته ده؟

او د شریعت د ایجابا تو څخه مخالف عمل چیرته دی؟ او د خدای دوستانو څخه وکړل چه ځنی خلک په هغو باندی انتقاد نیسی او د هغو سلوک بدعت گڼي.

---

# دریم فصل

## د سیاست مدارانو سره دهغه د صراحت وینا او دیني عالمانو په اعتصابونو او مظاهرو کې د هغه ګډون کول

---

د مرحوم فخرالمشائخ صاحب له ښکاره ځانګړتیاوو ځخه یو داؤ چه د حاکمانو او سیاست مدارانو سره ئې په ډیر صراحت او جرأت خبرې کولې او هغه څه چه د اسلام مقدس شریعت ایجابوه له هغه څه به ئې پوره خبر کول.

د قدرت د خاوندانو په مخ کې د حقایقو ویل د عالمانو او د صوفیه طریقو د مشائخو له مهمو وظایفو څخه ګڼل کیږي. د دغه دیني واجب له مخې ځنو عالمانو د دغه خصلت او صراحت په لړلو په اسلامي نړۍ کې وکولای شول چه له یوې خوا د سیاست مدارانو د اصلاح په باب څه وکړي او له بلې خوا خپل نوم چه تاریخ کې په طلائي خط سره ثبت کړي. که عالمان هر وخت دغه د حق ویلو طریقه تعقیبه کړې نو په یقیني ډول څوک به دا جرأت ونلري چه اسلام او مسلمانانو ته څه ضرر او نقصان ورسوي.

په دغه حالت کې چه مهاجرو افغانانو له دری ملیونو ځخه زیات

پاکستان ته راغلی او د هغوی بنده مجهوله او نه پوهیږو چه څه به کیږی؟
او د روسانو او د هغوی د پلویانو دغه تجاوز چه زمونږ د بی وسیله ملت
کار به چیرته رسوی، په دغه حالت کی چه افغانستان نیول شوی او هره
ورځ په زرګونو مسلمانان د روسانو او د کابل د کمونستی حکومت د په
بمباریو په شهادت رسیږی که څه لږ ځنګی نظر وکړو ښه به پوه شو چه د
سیاسی اوضاعو د اصلاح په باب چپ پاتی کېدل بی غوری او کمی کول دی،
که په افغانستان کی ټولو عالمانو په یوه غږ سره د کمونستی افکارو د
خپرېدلو په مقابل کی تصمیم نیولای وی او د دغه سیلاؤ مخه ئی بنده
کړی وی، که په ښو ځنګیو کی د الحاد تدریجی حرکت د عالمانو او مشرانو
د جدی توجه مورد ګرځیدلی وی، که څنو عالمانو له ورځ تیرولو څخه
یو قدم ځنګی ایښی وی نو دغه بدبختی به مونږ ته نه رسیدلی. اګر
که مونږ په مقدراتو پوره باور لرو ولی په سعی او کوشش سره د بی
دینه د افکارو په ځنګیو سره هم مکلف او مامور یو. پخوانی وضع
داسی وه که چیری یو عالم دغه جرأت ښودلی وی چه حقایق ښکاره او
بیان کړی نو د پرلپسی د نورو د ملا نترې مورد ګرځیده. مرحوم میا ګل
صاحب هر وخت سعی او کوشش کاوه چه حاکمان د تبلیغ او استدلال
د لاری خپلو نیمګړتیاؤ ته متوجه کړی او کله داسی شوی چه د فخر
المشائخ او زمامدارانو ترمنځه لفظی مشاجره پیدا شوی ده مګر کله به
ئی په ټانګړیتوب سره دغه تبلیغی موقف غوره کاوه او کله به ئی د لږو
علماؤ لخوا ملا ترکیده تردی چه داسی به هم کیده چه د هغه د مجلس نږدی

کسانو به هم د هغه په موقف انتقاد کاوه او هغه به ئې یواځې پرلیښودو.

## دبیرغ کال

د هغه د لهجې د صراحت او د علماؤ د اعتصاب د بښت الیښودلو یو مثال دا دی چه په (۱۳۱۹) هجری لمریز کال کې ؤ او دغه کال د افغانستان د دین دوستو خلکو په نزد د بیرغ کال په نامه شهرت لری او قصه ئې داسې وه:

مرحوم میاګل صاحب د پروان، کاپیسا، لغمان، ننګرهار، پکتیا او د نورو ولایتو نو د عالمانو سره دا موضوع په مخکې کیښوده چه دولت د معارف په ساحو او د نوروکې د جیلوپلا نونو د سرته رسولو په لاره کې ورځ په ورځ د حقیقي او واقعي اسلام څخه لری کیږی او دغه موضوع ئې نژدې او لری خلکو ته ورسوله او د اعتصاب په شکل ئې د عالمانو د یوی غونډی بنسټ کیښود او د عالمانو څخه چاچه د دغې موضوع ملا تړ وکړ هغه دا دی:

مولوی عبدالمنان صاحب، مولوی عبدالغنی صاحب، مولوی مرادخان صاحب. د استرغچ مولوی، د قره باغ مولوی صاحب، د قره باغ حاجی غلام حضرت او مولوی عبدالجلیل صاحب (رحمته الله علیهم) دی.

دغو عالمانو د میاګل صاحب په مجلس کې خپلې نظریې څرګندې کړلې او داسې فیصله وشوه:

عالمان او د نظرخاوندان د خانقاه شیخان دی مبارک بیرغ چه په هغه کې د — لا اله الا الله محمد رسول الله) کلمه وی ر دغه مبارک بیرغ به هر وخت د میاګل صاحب سره د سفر په حالت کې هم ؤ.) په اوږ و واخلی او د جهری ذکر په حالت کې دی د کابل ښار ته حرکت وکړی.

دغه نظریه عملی شوه او په سلګونو تنو عالمانو، ذکرکوونکو شیخانو او دا اسلامي ورد خاوندانو جبرغ واخست او دغه دیني او تبلیغي موکب چه دجهوري ذکو او ازونه ئې پورته کېدل په موټرونو کې مخ په کابل روان شو او د کابل په ښارکې درسېدلو په وخت کې دخلکو دجم او جوش او ازونه پورته شول مګرمیا ګل صاحب و نه غوښتل چه دنفاق او تفرقې دروازه د دولت پرمخ خلاصه کړي. او حاکمانو ته موقع ورکړي چه یو مرشد په بل سره فلج کړي نو هماغه شوچه د مرحوم شورالمشائخ کورته ورغی او دهغو په اتفاق سره ئې ځواړلس مواده چه یوځای لیکلی شوی وُحکومت ته وړاندې کړل او د حکومت پام ئې دې ته وګرځاوه چه عالمان، روحانیون او نور د فضل او دیانت خاوندان کولای شي چه ټول مفاسد ښکاره کړي او د مراقبت د قدرت په حیث د دولت د کارونو په نسبت موقف غوره کړي.

حضرت شورالمشائخ دغه نظریه خوښه کړه او د ټولو عالمانو او د فضل د خاوندانو سره ئې چه د میا ګل صاحب په حلقه کې شامل وُ خپله خاصه مهرباني وکړله.

شورالمشائخ د افغانستان له هغو مشائخو څخه دی چه ډېر کلونه ئې د دیني حقایقو او د نقشبندیه د مبارکې طریقې د خپرولو په لاره په ښوځندمتونو سره تیر کړي دي او د افغانستان دین دوسته خلک د هغه د نامه سره اشنادي او هغه د افغانستان د ازادۍ په جهاد کې ګډون کړی دی.

دغو دوه محترمو شخصیتونو د عالمانو او نورو په نسبت بېشپل

مشرتوب پښتول دیني او اجتماعي مطالب يې له کومې ويرې د وخت حکومت ته ورسول او له حکومت څخه ئې په کلکه غوښتنه وکړه چه د عالمانو پيشنهاد د چه دا فغانستان د ټولو عالمانو د پيشنهاد په حيث کښل کيږي د منل شي او د هغه په اساس لازم اجراءات ونسي. داچه د پيشنهاد مواد ترکومې اندازې د توجه او تطبيق مورد وګرځيدل او په کومه اندازه په هغه کې غفلت وشو نو په دغه باب مونږ سره ثقه معلومات نشته ولې دومره ويلاى شو چه د طريقې د دغو دوو مشرانو د حرکت مثبت او يقيني تأثير او د هغو د صراحت لهجه حکومت ته داسې خبرتيا ورکړه چه حکومت نشي کولاى چه د دين څخه مخالف پروګرامونه عملي کړي او بايد و پوهيږي چه د حق او حقيقت د بيرغ پورته کوونکي د هغه پوښتيد ونکي او حاکمانو څخه د حساب غوښتونکي دي.

دونکي

جناب مياګل صاحب په دغه ديني حرکت کې د مؤسس او بنسټ ايښو په حيث کښل کيږي او دافغانستان د دين دوسته خلک د دغه ديني حرکت هيڅکله نه هيروي.

کله داسې کيږي چه مرحوم فخرالمشائخ به د منبرد پاسه يوې موضوع ته چه غير ديني او د افغانستان د کښتو څخه به مخالفه وه اشاره کوله او يا دغه کار به ئې د يوه عالم په واسطه کاوه او هيله ئې کوله چه موضوع په د برقوت سره په جومات کې چه مخبران به هم د عادت په توګه پټ موجود ؤ ياده کړي او بيا له دغو موضوعاتو څخه د عمل انکار. هيله وه چه حکومت غوښتل د غه هيله په د برفستق او فجود سره په تکاب کې وشي مګر همدغه

دمنبر تبلیغ وکولای شو چه دغه اراده شنډه کړي. ددی باید هم یادونه وکړو چه دجناب فخرالمشائخ فصاحت، بلاغت او سیاسی شعور په دی اندازه وُچه زیاتره خلک د هغه یادونه کوی او ددغو صفاتو په لرلو سره کله کله داسی هم شوی چه مرحوم فخرالمشائخ به یوه موضوع چه لدین څخه به مخالفه وه دوخت د حاکمانو په مخ کی بیاده کړه او د هغی په باب به ئی د توجه غوښتنه وکړه او دغه غوښتنه به چه په دوستانو فضا کی کېدله ډېره مؤثره او دحکومت د تجدید نظر مورد گرځېدله.

قرآن کریم د" ادع الی سبیل ربك بالحکمة والموعظة الحسنة وجادلهم بالتی هی احسن". په لار ښودنی سره مسلمان دی ته متوجه کوی چه باید د تبلیغ په لاره کی له حکمت، ښه وعظ او ښیکی مجادلی څخه کار واخستل شی. او دی ته متوجه وی چه څرنګه نتیجه تر لاسه کړی او تل د نرمی لاره غوره کړي. مرحوم میاګل صاحب د تبلیغ او نصیحت دد غی طریقی خاوندوُ او د ضرورت په اساس ئی ورڅخه استفاده کوله او ددی حقیقت او واقعیت یو مثال دادی چه د بیرغ د کال په اعتصاب کی ئی خپل موقف سخت توی وښود او بیائی د پل خشتی په جومات کی په (۱۳۴۹) هجری لمریز کال د عالمانو د اعتصاب سره یو ځای لا سخت توی وښود او دغه اعتصاب ئی داسی تنظیم کړ چه دوخت حکومت ئی له سختی مله لار ونه لیدله او د عالمانو قوت ئی په ښه توګه معلوم کړ.

د تبلیغ د ساحی د پراخوالی په نظر کی نیولو سره باید وویل شی چه د میاګل صاحب (رحمة الله علیه) د لهجی صراحت یوازی حاکمانو ته نه وُ بلکه

په تبلیغ کې د هغه صراحت ټولو خلکو (عاموا وخاصو) ته متوجه وُ او په خلکو کې د نیمګړتیاؤ موجودیت یادا چه خلکو دالهي اوامرو څخه فاصله نیولې او یادا چه د ځوانانو په منځ کې انحرافات او مفاسد پیدا شوي د غه ټول به ئې په چپنلې حافظې کې ساتل او بیا به ئې یا په چپله او یا د یل عالم په واسطه به ئې د منبر د پاسه د اصلاحي لارې یادونه کوله.

د هغو مفاسدو څخه د سود، چرس او نشه کوونکو موادو، قمار او غیبت موضوع ګاني دي چه کله به د دغو مفاسدو څخه خبر شو نو هر یو. به ئې د هغو له بدو نتائجو څخه خبر کړ.

دغه محترم (رحمته الله علیه) په ټول عالمان او د فضل خاوندان خپلو مهمو مسئولیتونو ته متوجه کړل او نه به ئې غوښتل چه د عالمانو او د خلکو په منځ کې تبلیغي ارتباط له منځه لار شي.

## دالحاد څخه د غزنیوي په غرض د مرحوم توجه:

هغه څه چه د افغانستان د خلکو د مظلومیت او غم سبب شوي او تر ننه پورې د هغه د بد بختۍ آثار لیدل کېږي او د دغه هیواد مسلمان اولس ئې در په در ګرځولي هغه د اسلامي تربیې په باب غفلت کول دي.

افغانستان د پیړیو په اوږدو کې د مدرسو، مفکرینو او د علم او فضل د خاوندانو او مؤلفینو لرونکي وُ او اسلامي نړۍ د هغو د علم څخه استفاده کړې او دغه ځمکه ئې د فلسفې او تصوف ځمکه ګڼله مګر په دې روستیو وختونو کې یو شمیر ځلمیانو د الحاد په لاره روان شول او د شوروي د هیواد په ملاتړ چه تش د دوست په نامه ئې غلول کول او په حقیقت کې ئې

زموږ د هیواد د خرابۍ د پاره هلې ځلې کولې. ځینې شوم مطالب ئې مخ په وړاندې وړل مګر د دوی له شومو غرضونو یو شمیر ځنګک چه په لوی خدای ئې قوی ایمان درلود او درد او عاقبت اندیښي ئې خان ونداؤ د هغو په راس کې مرحوم فخرالمشائخ صاحب ؤ او هغه هر وخت ویل چه باید د هیواد د ځلمیانو اسلامي روزنې ته پوره پاملرنه وشي کړ ځینې کوچنیان بېنو ونځیو ته لیږي ئې نو کوشش وکړئ چه هغوی مسلمان پاتې شي او د اسلام له لارې بلې خواته کاږه نشي هغه د الهام له مخې پوهیدلې ؤ چه الحاد مفکوره په مخفیانه توګه خپریږي او باید د هغې د مخنیوي د پاره د تبلیغي مختلفو وسایلو څخه کار واخستل شي د غه مرحوم چه لاڅوک د کمونستي د مفکورې د الف او باء سره آشنا نه ؤ د هغې په باب ئې تشویش درلود او ټول خلک ئې د دغې الحادي مفکورې له عواقبو څخه چه د یو شمیر ځلمیانو مفکورې ئې زهرجنې کړلې خبر کړل.

هغه رسالې چه د دغه مرحوم لخوا پیشنهاد شوې عبارت دي له:

ذیني عقائدو تعلیم ته توجه، د اسلامي ثقافت خپرول، د دیني محاسنو او حقایقو پوهول.

البته له دې څخه د هغه منظور دا ؤ چه د خلکو په افکارو کې د الحاد او د هریت د نظریاتو د پاره ځای موجود نشي ځکه که موږ د ځلمیانو افکار په اسلامي تعلیماتو سره خروبه نکړو هغوی بلې خواته مخه کوي او د هغو په مخ کې د غیر اسلامي افکارو زمینه او فضا برابریږي نو د عالمانو توجه او تعلیم په دې منظور چه په اسلام سره د ځوان نسل ساتل وشي له مهمو

وظایفو څخه ګټه ګیږي. د علمي او تصوفي غونډو جوړول او د تصوفي طریقو خپرول یواځې د هغه په دینا سره نه ؤ بلکه هغه په عملي توګه د دیني او عقیدوي اهدافو د تحقق د پاره مثبت کامونه پورته کړل او هر عالم ته ئې د خپلو نظریو یادونې وکړې.

هغه څه چه موږ ورڅخه یادونه وکړه په هغه کې څه مبالغه نشته او موږ نه غواړو چه د فخرالمشائخ د تاریخ په باب له واقعیت څخه لرې خبرې وشي ځکه د شخصیتو نو د تاریخ لیکل یو علمي امانت دی چه باید لیکونکي او مؤلف د هغه پوره مراعات وکړي.

مرحوم میاګل صاحب د ومره محاسن او صفات لري چه د ټولو یادونه د غټ تالیف ضرورت لري او هغه څه چه په دغه رساله کې یاد شوي دي د هغې د هر مطلب د ثبوت د پاره له عالمانو او منورینو څخه ملاتړکونکي موجود دي.

موږ نن وینو چه د مرحوم په نزد د الحاد د خپریدلو ویره حقیقتاً په ځای وه او دغې ګمراهۍ زموږ د هیواد یو شمیر بې ګناه مسلمانان ئې بد بختۍ، بې وطنۍ، احتیاج او مرګ سره مخامخ کړل.

که هغه ټول موږ چه فخرالمشائخ لا پرومیې ورڅخه یادونه کړې وه په ښه غور سره مو مطالعه کړې وی او د همت ملا وی تړلې وی نو ممکنه ده چه د د غو بد بختیو سره مخامخ شوی نه وای.

یو له هغو څخه چه د مرحوم د صراحت د وینا مثال دی هغه د محمد داود په مقابل کې دی. کله چه محمد داود د افغانستان واکې په لاس کې واخستلې

نو له میاګل صاحب ځخه ئې په کلکه د ملاقات غوښتنه وکړه او له موضوع ځخه ئې د هغه وخت داخله وزیر ته خبر ورکړ، کله چه د ملاقات موضوع میاګل صاحب ته یاده شوه نو هغه په لومړي ځل و نه منله ولې بیا د حکومت د ډېرې تقاضا په اساس کابل ته تشریف ویوړ او د محمد داود سره ئې ملاقات وکړ او هغه ته ئې په صراحت سره د اسلام د مقدس دین ایجابات بیان کړل او هغه ته ئې ورو پوهول چه د غه هیواد بې له اسلامه بل دین نشي منلای. بیا کله چه فخرالمشائخ د هغه له انحرافاتو ځخه خبر شو نو منبر ته پورته شو او د منبر د پاسه ئې اعلان وکړ چه بايد محمد داود په دې وپوهیږي چه له اسلام ځخه د هر جزئي انحراف به د بد د عواقبو سبب شي.

داود د مرحوم میاګل صاحب کډون یو نمونه چه په ډله ایزه توګه ئې د عالمانو او مشائخو سره د اسلامي تعلیماتو او نظریاتو د خپرېدلو او د سیاست مدارانو او حاکمانو په مقابل کې د هغه د لهجې د صراحت په باب وښودل شوه.

موږ یقین لرو چه ګران لوستونکي د هغه د لهجې د صراحت او د هغه د دیني خدمتونو یادونه کوي او وائي چه دغې موضوع او د هغې موضوع ته ولې په رساله کې ځای نه ورکول کیږي؟ د لې زموږ ځواب دادی چه ځکه مو وویل او موږ یادونه کړې ده چه په دغه رساله کې ټولو موضوعاتو ته چه په میاګل صاحب اړه لري اشاره نده شوې او نه موږ دي ادعا کړې ده چه په دغه وړه رساله کې د هغه ټول محاسن او صفات یاد شوي دي.

سو بڼ د هجرت په دنیاکی له هیواد څخه لرے داوریدل چه دغه مشهور علمی، اجتماعی او تصوفی شخصیت وفات شو او خپل حبیب ته ورغی.

" الموت جسر یوصل الحبیب الی الحبیب" مرګ د پله په شان دی چه دوست خپل دوست ته رسوی.

مو بڼ د هغه مرحوم د ځنو کارنامو لیکنی یادونه وکړه څو له یوی خوا د شخصیتو نو کارنامی په ثیتو لو سره له ضائع کیدلو څخه وژغورل شی او له بلی خوا خپل روحی ارتباط د هغو د روحانیت سره لا ټینګ کړو.



# څلورم فصل

## د دغه لوی مجاهد جهاد او هجرت په باب او د جهاد په ساحه کې د هغه خدمتونه

دغه فصل د زماني د ترتیب له مخې په څلورمه مرتبه کې ځای ورکړل شوی دی.

او که نه د ارزښت له حیثه او دا چې د موجوده شرایطو او حالاتو له مخې د هیواد ټول مسلمانان په خاورو او وینو کې دي افغانستان هیله لري چې ټول نکونه او ټولې څېرنې او یا دوني د جهاد په منظور وکرځول شي نو په دې اساس باید په اوله برخه کې وي. د افغانستان موجوده جهاد یعنې څه؟ د باطل په مقابل کې حقه مبارزه، د هغو کسانو مبارزه چې په دېر ظلم او وحشت له خپل هیواد څخه ایستل شوي دي. هیواد ئې له بیخه څخه زیات وران شوی دی. د هغو کسانو مبارزه چې خپل نژدې دوستان ئې د لاسه ورکړي. د هغو کسانو مبارزه چې په کلونو ئې له همت څخه کار اخستی دی او لاسونه ئې نورو ته نه دي اوږده شوي.

نننۍ نړۍ د تکنالوژۍ په خپرانونکو پرمختګونو په یو دول ظلم، بربادۍ، بدبختۍ، وحشت او بې رحمۍ اخته ده چې ښکاره نمونه ئې په افغانستان کې دېنو.

په افغانستان د سلو زرو څخه زیات د روسی عسکرو موجودیت، د روسانو لخوا د دولتی مهمو کارونو سرته رسول، د اسلامی او افغانی ثقافت د منځه وړلو هلې ځلې، د معارف د تعلیماتو په روسی کولو کی چټکتیا، د هیواد اقتصادی خرابوالی، روسیې ته د هیواد د تاریخی ذخایرو او شتمنیو انتقالول، دالحادی مکتبونو خپرول، د دینی او مذهبی پروګرامونو بدلول، د کمونستی کتابونو زیاتول او تیټول، د مارکسی نظریو وړاندی کول او د اسی نور د پرمفاسدو چه ټول افغانی مسلمان اولس ئې په حرکت راوستل، حرکت د اسلامی هیواد د بهرنه ترلاسه کولو په لوری. حرکت د انتقام اخستلو په غرض د وبنې چینو کی غدارانو په لوری چه په سلهاو زرو د بې ګناهو کسانو وینې ئې تویې کړې او په سلهاو زرو کسان ئې د غمونو سره مخامخ کړی دی. حرکت د اسلامی حکومت د بیا منځته راوړلو په غرض، حرکت او همت کول د شهیدانو فریاد ته د رسیدلو په غرض د اسی شهیدان چه د حال په ژبه د د اسی ظالمانو د لاسه په شکایت کی دی چه د چنګیزیانو ظلم او ناروا ورته هیڅ بنکاریږی. حرکت د نړی د بیدارۍ د پاره څوڅول و پوهیږی چه کمونستی یعنی څه؟ وژل، بربادی، وحشت، بې عفتی، د ظلم او ناروا لاس اوږدول، ترور، د ماشومانو لوټول او بالاخر د انسانی ارزښتونو تر پښو لاندی کول او د اسی نور عملونه دی چه د شرافت او انسانی کرامت له داسی څخه وتلی دی.

د اسی کسان شته چه لا تراوسه ئې د دی ادراک نه دی کړی چه ولی په میلیونو میلیونو خلق د افغانستان څخه ووتل او لا وځی. د دی رسالی

دلیکلو په وخت ( د ۱۳۶۲ المریز کال د میزان د میاشتې په اخره کې ) د روسانو د بې رحمانه بمبارۍ په سبب د استالف، کوهدامن او کوه صافۍ د خلکو څخه په زرهاؤ کسان شهیدان شول. او په زرهاؤ کسانو هجرت وکړ او د مهاجرینو سیلاؤ لا روان دی.

هغه کسان چه تر اوسه د کمونستي د منافقت په غولونکو شعارونو چه دوړې، جامه او کوردی غولیدلی دی دوی په دی پوهیدلی نه دی چه ولی دغه بد بختي په ډېره چټکتیا موږ افغانان ئې د احتیاج او درپه دربکېدلو سره مخامخ کړي یو. د ډودۍ په ځای زهرلرونکي بمونه، د کور پر ځای قبر او د جامې پر ځای زولانې او کفن راپه برخه شول.

د دی ضرورت نشته چه نورهیوادونه دغه تجربه تکراره کړي، موږ ولیدل او بنه موولیدل چه په زرګونو عالمان، روحانیون، د علم طالبان، صوفیان او مشائخ ژوندی تر خاورو لاندی شول. توجه وکړئ ژوندی تر خاورو لاندی شول.

په دی کی مبالغه نشته چه د کابل کمونستي حکومت په سلهاؤ او زرهاؤ کسان ئې له زندانونو څخه ویستل او تول ئې په یوه ځای کی لاس تړلی غورځول او د ټنکرونو ، بولدوزرو او درنو ماشینونو په وسیله ئې په هغو باندی خاوری اړولی او تر ډېره لیدل شوی چه په خاوروکی خښ شوی کسان به په حرکت کی ؤ او بیا به چه مړه شول نو خاوری به ځای په ځای و دربدلی.

دغه راز د بې ګناه کسانو ژوندی خښول د بشریت د تاریخ په لومړی

ځل سره پېښې شوا و دد ښمنانو د خپلو دغو شومو کارونو او کړکېچنو ظلمونو د پاره د افغانستان خاوره مساعده وګڼله او څه ئې چه غوښتل هغه ئې وکړل او لا کوي ئې.

د عالمانو څخه يو تن چه تر يو وخته د پل چرخي په بنديخانه کې و د په ستر ګو ليدلی حال داسې بيانوي:

کمونستانو په يوه ځل (۱۳۰) تنه ديني عالمان د پل چرخي له بندي خانې څخه وويستل او په يوه ځاى کې ټول ئې په شهادت ورسول (انا لله وانا اليه راجعون) مرحوم فخر المشائخ د دغه راز ظالمانو ښپېښو په اوريدلو سره طاقت ونکړ او خپل تبليغي جهاد ئې د ظالمانو په مقابل کې پيل کړ. فخر المشائخ (رحمة الله عليه) په (۱۳۵۷) هجري لمريز کال د رمضان په مبارکه مياشت کې د قرآن کريم ختم د سبزسنګ په قريه کې وکړ او بيا تګاب ته لاړ البته دهغه تګ تګاب ته د لوى اختر څخه وروسته او داچه د منبر تبليغ ئې قوت پيدا کړ شوى دى.

فخر المشائخ او د هغه مشرانو ځامنو د تګاب منډين وفادار او زړه ور خلک د جهاد د پاره منظم کړل او عملي جهاد ئې پيل کړ. دا لومړنی جهاد دى چه محاذ شروع کېږى خلکو غشي و ويشتلاى شول، د تګاب د اندراب منطقه اګر که غرنۍ ده ولې په زړه پورى د پناه کېدلو ځايونه نلري او هره شيبه د بمبارۍ خطر موجود و. فخر المشائخ په خپل تصوفي جوش، اسلامي جذبې او ديني مسلکي او مذهبي عشق سره داسې اعلان وکړ:

د اسلام په لاره کې مرګ ژوند دى او ژوند بې له اسلامه مرګ دى که

تاسي ټول دخداى د رضا او ددينې معتقداتو څخه دد فاع په لاره کې مړي دحقې لارې شهيدان يئ.

د ټانک اواز لين لين نژدې کيږي او په سرک باندې چه د مست رود څخه د ننګاب له تعمير څخه نژدې تيريږي د مبارکې مدرسې او خانقاه او د ننګاب پروان او دافغانستان د ټولو خلکو د زيارت او ادب ځايونو په لورې مخ په حرکت دى. دابليس دغه لښکرا وله خدايه منکران څه پوهيږي چه ددغه ځاى زړور خلک منظم شوى او له خپل اسلامي دين او مسلک او دخپل مرشد فخرالمشائخ له کور خانقاه او مدرسې څخه دفاع کوي. په دغه وخت کې د مبارک صاحب (رحمته الله عليه) غږ د حال په ژبه دى. يو نظر د ګنبذى او زيارت په لورې کوي داسې زيارت چه له ډيرو کلونو د خلکو د تبرک ځاى ؤ. مجاهدينو دغو ځايونو ته چه په ورکتوب کې د ميند و په غيږ کې او په ځوانۍ کې د خپلو پلرونو سره راتلل نظر کاوه چه دغه ټول متبرک ځايونه دکابل د کمونستي حکومت له خوا د تهديد سره مخامخ کيږي او داسې فکر کيږي چه د هغو په ټولو اسلامي معتقداتو او د معنوى تکيې په ځاى باندې باطل خط راښکل کيږي او د مسلمانانو د تقاضا په خلاف د الحاد ژوند منځ ته راځى نو د غو غيرتي مسلمانانو او مجاهدينو ته غوښتل چه زيارت، خانقاه، مدرسه او ميرغ چه له ډيرو کلونو د فخرالمشائخ په کور باندې ريښې له منځه لاړې شي او داسې کسانو ته موقع ورنکړل شي چه دوى دين ته خرافات، مدرسې ته امپريالستي اډه او سوڅ او وراد و ته ارتجاعي حرکتونه وائي. د مبارک جومات

ترڅنګه زړه وروڅلمیانو دفخرالمشائخ او دهغه دمشرانو زامنو دمستقیمي قــوماندې لاندې داسلامي غیرت او دحق او حقیقت څخه د دفاع دجذبې په بنود لوسره د ټولو نظر جلبول داسې جومات چه داسې ورځ نه وه چه په هغه کې به د خدای دوستان په هرکنج کې د خدای په ذکراوعبادت مشغول نه ؤ، له جلې خوا فخرالمشائخ پخپلې سوزانې ځیرې او پرالهي مقدراتــو او نصوت مؤمن شخصیت داسې غږ کاوه :

ای دحقې لارې مجاهدینو! ای د - لااله الاالله محمد رسول الله د کلمې په دنیاکې روزل شویو زامنو! دغه دامتحان ورځ ده، دغه ده هغه ورځ چه دکلونو څخه د هغې دراتګ څخه مې خبرې کولې اوتاسې اوستاسې پلرونو ټولو تعهد دکړ چه له خپل دین اسلام او مسلک، له خپل شرف او ناموس څخه په ډېره میړانه دفاع کوو، جنګ کوو او د ښمنان وژنو اوس دغه قووې د تیقـه په دقیقه نژدې کېږي -

څلمیانو نور دخبرې اوریدلـو تاب رانه وړ ددې د دولتي ټانکونـو او زره پوشو دمقابلې دپاره روانېږي، دصوفیانو له ترپې څخه ـتیرېږي او دکفر او الحاد د لښکرسره مخامخ کېږي، د دواړو خوا مخامخ جنګ شروع کېږي په دغه وخت کې یو څلمی زخمي کېږي او داسې وائي :

که زه د خپلو اسلامي او انساني هیلو قرباني شوم. که ما ته ددښمن ګذار ورسید او د جنایتکارانو او مفسدانو او هیواد خرڅوونکو جغاله ژوند څخه محروم کړم نو تاسې بیداره شئ او وپوهېږئ چه دغه دخدای او پیغمبر دښمنان د ناکامۍ سره مخامخ کید ونکي دي

مه دادینږی، مه بی زړه کیږئ او په ډیر ناریښتوب سره خپل
مقدس جهاد ته دوام ورکړئ. یو بل ځلی هم زخمی کیږی او یو د بل لپاره
پر ځمکه لویږی او د شهیدانو شمیر (۳۷) تنو ته رسیږی او له کمونستانو
او د دین او وطن له دښمنانو څخه له سلو څخه زیات کسان د خپل بد عاقبت
سره مخامخ کیږی. په دغه وخت کی د کمونستی وینې تو یونکی لښکر چه ماتی
کوی د تکاب شریفو خلکو څخه چه کوم کسان د دوی په لاس راځی د ځان سره
وړی او په زندان کی ئی اچوی او د دغو زندانیانو شمیر چه تقریبا (۱۴۰)
تنو ته رسیږی لا تر او سه د هغو پته معلومه نه ده او له موجوده حالت څخه
داسی معلومیږی چه د غو هم لو د شهادت شربت څښلی دی. بیا وروسته
هوائی جنګ منځ ته راځی او د ملحد حکومت له خوا جومات، زیارت
او د مبارک صاحب کور بمباری کیږی او لومړی بم د فخرالمشائخ صاحب په
کور لویږی ولی د خدای په فضل او عنایت چا ته ضرر نه رسیږی. په دغه
وخت کی مرحوم فخرالمشائخ په تلاوت او او راد و ..... ویلو مشغول وی. بیا بمباری
پیل کیږی او په زیارت، جومات، خانقاه او د ذکر، فکر او تسبیح او تهلیل
په ځایونو لویږی ولی زیات ئی نه چوی. په دغه وخت کی میاګل صاحب
اصرار کوی چه په دغه حالت سره مبارزی او جهاد ته دوام ورکړی
او شهادت ئی په برخه شی ولی د هغه منسوبین او د تکاب زړور خلک
فکر کوی که صاحب په هغه ځای کی مبارزی او جهاد ته دوام ورکړی
او شهید شی نو بیا به داسی څوک نشته چه د جهاد بیرغ پورته کړی
نو د هغه په شهادت سره د مجاهدینو په صفونو کی کمی پیدا کیږی نو

داسې فیصله وشوه: باید میاګل صاحب دخپلو ټولو منسوبینو سره دجنګ له صحنې سره وو یستل شي او دهجرت دپاره تیاری ونیسي څود غه لوی شخصیت دافغانستان دازادۍ په غرض لازیات خدمتونه وکړي. لومړی دغه پیشنهاد دهغه لخوا نه منل کیږي مګر بیا د معقولو دلایلو او دجهاد د مصلحت په منظور هجرت ته غاړه ږدي او بیا له دې چه د کورسامان او نوروشیانو ته متوجه شي دیو شمیر کوچنیانو سره دمیاخیلو له لارې دتګاب غرنۍ سیمې ته روانیږي. دغه ورځ ددلوی (۲) او دوادۍ او یخنۍ طاقت سخت دی مګر سره ددې دهجرت لاره په ځنګې نیسي او د تګاب خلک که له یوی خوا دمیاړی دلاسه په تشویش کې دي ولې د بلې خوا خوشحال دي چه دوی وکولای شول چه میاګل صاحب مهاجر کړی او ورته دهر خدمت زمینه برابره کړي. که دتګاب خلک له یوی خوا د شهیدانو په ښخولو مشغول دي له بلې خوا یو شمیر ځلمیان دفخرالمشائخ او هغه دکورنۍ دغړو د نقلولو او بیولو خدمت دپاره حاضریږي. دغو ځلمیانو میاګل صاحب ئې په ډیر اخلاص په اوږو واخست او نوبت په نوبت ئې په خدمت کې برخه واخستله. لاره ډیره سخته وه ولې د میا ګل صاحب په نورانی مخ او دهغه په دعا سره آسانه شوه. میاګل صاحب له یوی قریې څخه بلې قریې او له یوه ځایه بل ځای ته نقل مکان کوي. او دتګاب، میاخیلو، کوټی او اسکن دین دوستو خلک د هغه په خدمت کې دي. او میاګل صاحب چه هر چیرته رسیږي خلکو ته دجهاد توصیه کوي او دکمونستی په مقابل کې دغفلت کولو دخطر یادونه کوي.

په دغه وخت کې دغه ویره هم وه چه د ملحدانو لښکر د غه بې دفاع موکب تعقیب کړي ولې د هیڅ خطر احساس ونه شو تر دې چه کوم کسان چه د دولت د معاونانو څخه ؤ دوی هم ونکړای شول چه د خلکو احساسات څخه لرې پاتې شي. او داسې تعهد ئې وکړ چه دغه راز فاش نکړي او سره ددې چه دولت ته نژدې دي د قومي تعهدانو څخه لاس ونباسي.

د کابل ملحد حکومت د فخرالمشائخ د هجرت د خبر په اوریدلو سره په تعجب کې لوئیږي ځکه د غه ملحد حکومت فکر کاوه چه هغه به د بمبارۍ په سبب د خپلې ښوولې کورنۍ سره له منځه تللي وي مګر له دې څخه غافل ؤ:

چراغی راکه ایزد بر فروزد
هر آنکس پف کند ریشش بسوزد

الهي اراده داوه چه د معرفت دغه څراغ او ددین او مسلک او د خدای دغه عاشق صوفي ژوندی پاتې کیږي څو نور خلک سعادت ته راوبلي، ژوندي پاتې کیږي چه د کفر او الحاد په مقابل کې جهاد وکړي. د خدای اراده وه چه هغه تر (۱۳۶۲) هجري لمریز کال پورې ژوندی پریږدي څو چه د دغو پنځو کلونو په موده کې د دین په لاره کې خدمت وکړي او هم خپلې هیلې ته ورسیږي چه له ډیرو کلونو څخه د هغه سره وه او هغه د حرم په مبارکه ځمکه کې مړ کیدل او هلته خښیدل دي. هغه حج اکبر په بنده خشوع سره ادا کړ او دا چه د افغانستان مسلمان اولس د کمونستي اشغال او بمبارۍ د لاسه د تکلیفونو سره مخامخ دی او د غه مسلمان اولس د خپل موجودیت د پاره چه تل په مسلمانانه سره پاتې وي د جهاد بیرغ پورته

کړی دی د هغو د پاره دعا کوی.

فخرالمشائخ (رحمة الله علیه) د خپل عمر په وروستیو ورځو کی د خپلو هیواد والو دعاء کوله او په محمد غو ورځو کی حاجی آغا او صوفی جان آغا د ده صالح پیران د هغه بالښت ته نژدی ناست وُ او د هغه د اوضاعو مراقبت ئی کاوه.

د معرفت د دغه لمر د لویدلو په دغو ورځو کی ټول دوستان د هغه په یاد کی وُ او د هر یوه د پاره ئی جلا جلا دعا کوله او د هغه ټول منسوبین چه د حرم په پاکه زمکه کی ورسره حاضر وُ د هغه په روستنی مجلس کی د هغه د ارزښتناکو وصیتو نو په اوریدلو سره مشرف شوی دی.

فخرالمشائخ د (۱۳۶۲) هجری لمریز کال د میزان په نهمه ورځ د ماسپښین نه وروسته په څلورو بجو او شلو دقیقو خپل روح حق ته تسلیم کړ. او په دی چه د حرم په مبارکه زمکه کی د خپلی ښخوانه هیلی له مخی د خدای په حکم او رضا وفات مومی ډیر خوښ وُ.

د هغه د وفات ورځ د (۱۴۰۳) هجری قمری کال د ذوالحجی د (۲۴) سره برابره وه. مرحوم فخرالمشائخ د افغانستان د جهاد د جریان په ورځو کی وفات کوی. او ډیر تشویش بنی چه په اخره کی به د اسلام د لاری د فدائیانو دغه فداکاری څه وی؟ د خاورینی کوی په مخ او سیدونکو ورځ په ورځ د مشکلاتو ډیر ښت د افغانستان په اشغالولو کی د روسیی اصرار. د ملیونو بیګناهو کسانو له هیواده جلا توب چه ورسره د حق او حقیقت په لاره کی د استقامت په سبب محتاج شوی دی د افغانستان د مسئلی په باب د نړی د سیاستمدارانو په جدی توګه عدم

توجه په دا سې ډول چه څه موده وروسته هېره شي. د افغانستان د موضوع په باب د اسلامي هېوادونو په جدي توګه عدم توجه ځکه له اسلامي هېوادونو څخه هيڅ دا سې يو هېواد پيدا نشو چه جرأت وکړي او د روسيې څخه خپلې اړيکې پرېکړي.

مرحوم میا ګل صاحب د دغو ټولو موضوعاتو په باب فکر کاوه او تشويش ئې درلود په دغه واقعيت باندې هغه کسان پوه وُچه هغوی د دغه درد لرونکې شخصيت سره له نژدې تماس درلود. هغه حق درلود چه هر وخت د مجاهدينو د اتحاد په باب جدي خبرې وکړي ځکه د هغه څوانی هيله همدا وه چه ټول مجاهدين په يوه محور جمع شي. ټول وه په يوه لار روان شي. ټول د (واعتصموا بحبل الله جميعا ولا تفرقوا) په حکم سره عمل وکړي او د دغه الهي حکم ته ظاهري جامه وروانه غوندي بلکه هغه خپل حقيقي او واقعي د ستورالعمل او د لارې څراغ وګرځوي.

دغه د اتحاد غږ او دعوت له هغه ځايه پيل کيږي چه فخرالمشائخ باجوړ ته رسيږي او يو شمير مهاجرين، مجاهدين او د اسلامي تنظيمو د نو مشران استقبال ته ئې راوځي او هغوی ته دا سې خطاب کوي:-

ستاسې کامیابي په اتحاد او اتفاق کې ده، که په يوه لاره او په يوه فکر خپله مبارزه وکړئ. که د غه خداى درکړي قوت چه د ايمان او عقيدې څخه پيدا دی په يوه لوري وګرځوی، که د اتحاد په باب د خداى او د هغه د رسول امر او د ميليونو مسلمانانو توقع عملي کړئ، که د غــه مبارزه په باطل باندې د حق د مبارزې په حيث پيل کړئ، که دی

ته متوجه شئ چه حق هیڅکله تعدد نه مني او بیا خصوصاً د جهاد په لاره کی چه یوی خواته حق او بلی خواته باطل موجود دی، که شخصی هیلی او پخپلو منځو کی سیاسی قدرت طلبی ترشا کړئ، که له هغه څخه چه ستاسی هیواد د حال په ژبه وائی او بیا د اسی هیواد چه له پیړیو د اسلامی مدنیت او د هند په زمکه ئی د اسلام د خپرولو مرکزو او اوس د کمونستی اشغالوله امله په فریاد داغلی او له واقعی مسلمانانو څخه د فداکاری غوښتنه کوی، که د غه ټول په نظر کی ونیسئ نو یقیناً کامیابی ته رسیږئ او د ناکامه سره نه مخامخ کیږئ.

فخرالمشائخ د صفونو دیوالی دهیلی په تکرارولو سره له یا جوړ څخه څخ په پیښور روانیږی او پیښور ته د را رسیدلو په وخت کی د زرګونو مسلمانانو مجاهدینو، مهاجرینو او پاکستانی ورونو لخوا د هغه تود هرکلی کیږی، د پاکستان اسلامی حکومت هم د دغه اسلامی تصوفی لوړ شخصیت قدردانی کوی، په دغه وخت کی تاکلی پروګرام موجود نه ؤ مګر د جماعت په پنځو وختو لمونځو نو او په هغو مجلسونو کی چه د میلمنو سره ئی درلودل د جهاد مؤثریت او د افغانستان د مسلمانو خلکو د دینی هیلو د سرته رسیدلو په باب خبری کولی.

یوه ورځ دغه محترم په دی فکر کیږی چه د اتحاد په باب د رهبرانو سره نوصیی ته د صحبت په شکل تغیر ورکوی. او د هغوی هر یوه ته لیک استوی او هغوی خپل فقیرانه ډوډۍ ته بولی او د هغو څخه زیاتره کسان د هغه غونډی ته حاضریږی. هغه پخپل فصاحت

اوبلاغت سره دجهاد، د مسلمانانو د مشکلاتو، د مسلمانانو د حالت څخه چه د هجرت څخه ئې ځکې په خپلو سترګو لیدلی، د اسلامی ثقافت او اسلامی اثارو په باب دکمونستانو د هلو ځلو، په اتحاد سره د مجاهدینو د تشوی کیدلو د ضرورت، په روستی کلونو کی د خپلو علمی او تصوفی نظریو د خپرولو په لاره کی د خپلو تجربو، په دروستی څو کلونو کی دکمونستی خطر په مقابل کی د مسلمانانو د غفلت، د ماوراء النهر د فتنو، دکمونستانو د ظالمانه اشغال او د هغوی په مقابل کی د ایمان په قوت د مسلمانانو د مقاومت خبری کړی. او دا ئې هم ویل چه زمایواځنی مقصد د اسلام حاکمیدل دی نه کوم قدرت او سیاسی زعامت، او زه نه غواړم د غه مبارزه د ښځی بی ثباتو چوکیو ته د رسیدلو وسیله وګرځوم، هر څوک که وغواړی چه د اهلیت او په اسلام باندی عمل کولو کی وی کولای شی چه د زعامت د مقام خاوند شی، ځکه زما اصلی هیله داده چه افغانستان ازاد او په کی اسلامی حکومت منځ ته راشی او هر څوک چه دغه هیله ترسره کړی زه د هغه ملګری او ملاتړ یم. حاضرینو د هغه خبری خوښی کړلی او د اسلام په لاره کی ئې خپل ثابت دریځ وښود.

په دغه لومړنی غونډه کی دا فیصله وشوه چه دغو خبرو ته دوام ورکړ شی. وخت په وخت غونډه کیږی، په زیاترو غونډو کی دفخرالمشائخ مشرزوی جناب حاجی آغا ګردون کوی. په دغو غونډو کی کله د مجاهدینو او د مشرانو اتحاد مخ په نږدی کید لو شی او کله له هدف څخه لری شی.

فخرالمشائخ وخت په وخت له خپلو منسوبینو څخه چه په غونډه د کی

ګډون کوی د موضوع پوښتنه کوی، د اتحاد په نږدې کېدلو سره خوښي کوی او د اختلاف د عواملو په زیاتېدلو سره خپګان کوی. په دغه جریان کی د جهاد خبرونه په غور سره تعقیبوی د ټنکاب مجاهدین ورځ په ورځ له هغه ځخه ګرد چاپیره ځای نیسی او د هغو ځینې د هغه حرم سرای ته نږدې د روانی کیږی. د هغه زامن په ډېر اخلاص د مجاهدینو خدمت او تنظیم ته د ریږی. د غه حالت په (۱۳۵۲) هجری لمریز کال پیښو د ښه د فخرالمشائخ د رسېدلو له وخته تر هغه چه د بیت الله د زیارت په نیت روانیږی دوام کوی او وخت په وخت ئې د مشرانو د اختلافونو د پیدا شویو مشکلاتو په باب خبری کولی او د هغو د اتحاد د دعوت لاره ئې تعقیبوله.

د جهاد په څو مرحلوکی د اتحاد د تبلیغ تاثیر وکړ او د تو یوی اندازی د مشرانو ترمنځ د نظر او عمل اتحاد منځ ته راغی مګر هغه بشپړ اتحاد چه د فخرالمشائخ منظور ؤ چه باید د جهاد د رهبری مقام یو وی او له همدغه یوه مقام ځخه د جهاد اوامر صادرشی هغه عملی نشو.

د افغانستان مسلمانو او دین خوښونکو خلکو چه جهاد ئې له عادی نقطی څخه په ښه نیت پیل کړ او په دغه جهاد کی چه د حق او باطل ترمنځ د فیصلی خبره ده د اچه دوی د روس د دغه نړی وال قدرت په مقابل کی پوره کافی یا یوه اندازه کافی وسله په لاس ولری د غه راز د وسله دوی سره نه وه ولی دوی په ډیر موفقیت سره پرمختګ کاوه. له هر لوری د الله اکبر غږ اوریدل کیده.

او دوی په لرګیو، تیږو او چقمقې ټوپکونو سره جهاد ته دوام ورکاوه د پټرولو بوتل د صابون سره د ټانک د منځه وړلو د پاره کافي ګڼل کیده. ولې هغه څه چه پوره موجود ؤ هغه قوي احساسات ؤ، د موفقیت هیله وه، عقیده چه په دغه حقه لاره کې شهادت د ټولو مشکلاتو ځواب دیونکې دی او که مبالغه نه وي ویلای شو چه د مجاهدینو تر منځه د جهاد او شهادت په باب رقابت موجود ؤ په دی معنی:

هرڅوکوشش کاوه چه ښه وجنګیږي، جهاد وکړي او په حقه لاره کې د قربانۍ ښه نمونه او ښه درس وکړځي او چه به شهید شو نو د هغه پلار، مور، ورور، کاکا او نورو خپلوانو ویاړنه کوله چه زموږ د کورنۍ غړی په حقه لاره کې شهید شو او د خپل اسلامي هیواد د آزادۍ په لاره کې ځ قرباني ورکړه.

هغه څه چه میاګل صاحب ویل او تشویش ئې درلود چه د مجاهدینو تر منځه اختلاف په جهاد کې خنډ پیدا کوي هغه مود سره په سترګو ولیدل او تر او سه (د ۱۳۶۲ کال د عقرب تر میاشتې) دوام لري او باید دا مو لیدلی نه وای.

فخرالمشائخ (رحمة الله علیه) چه په موفقې ډول په حرم شریف کې ځ له جهاد څخه لری نه ؤ. د مجاهدینو د پاره ئې دعا کوله او د هغوی صفونو د تنظیم په باب ئې فکر کاوه تردی چه یوه ورځ په دی فکر کې شو چه مجاهدینو ته د افغانستان په دننه کې پیغام ولیږي او همدا سې ئې هم وکړ چه د هغه مهم ښکې دا دی:

که د مجاهدینو په منځ ا و د جهاد په سنګرونو کې د اتحاد لاره غوره کړي که د غې نقیصې نه په ځیر شي چه ستاسې اختلاف د تباهې سبب دے نو یقیناً تاسې کامیابیږئ. دغه پیغام د یر ژر په افغانستان کې خپور شو.

مرحوم فخرالمشائخ هر وخت ویل چه د جهاد دغو ټولو مشرانو او د غه د درد او حس خلمیانو اسلامي جهاد پیل کړ او په دغه لاره کې د ښو خدمتونو مصدر وګرځیدل او مونږ هیڅ وخت د دوی له خدمتونو څخه سترګې نشو پټولای دلی زمونږ توقع له دوی څخه داده چه دوی د ایمان په قوت سره خپل اتحاد هم عملي کړي، دوی باید داسې کارونکړي چه د مسلمانانو د اعتراض او د هغوی د مایوسې سبب شي او د جهاد په لاره کې څه نقصان پېښ کړي.

ممکنه ده چه دلته دا سوال پیدا شي چه مرحوم فخرالمشائخ د څه د پاره خپل هجرت د ۱۳۰۷ هجري لمریز کال د دلوې د میاشتې پورې وځنډاوه او تر لسو میاشتو په داسې ځای کې وُچه هلته کمونستي حکومت موجود وُ نو ځواب ئې دا دی:

فخرالمشائخ عقیده درلوده چه اصل هجرت او د هغه مشروعیت دا دی چه مسلمانان په دارالهجرة کې د خپلو اسلامي انصارو په مرسته خپل قوت تر دې اندازې ورسوي چه بیرته ستانه شي او د کافرانو له شره د خپل اسلامي هیواد د خلاصې د پاره څه وکړي شي، د همدغه مقصد له مخې که څوک فکر وکړي او یقین ئې حاصل شي چه د هغه پاتې کیدل د جهاد د پاره کټور دی هغه باید جهاد وکړي ځکه هجرت د جهاد د تقویې کولو د پاره دی.

او دا چې د جهاد او مجاهدينو د تنظيمولو دپاره په تبليغ او نورو هلو ځلو سره زمينه موجوده وي نو نه ښائي چې ژر هجرت وشي.

فخرالمشايخ له هغه ورځې خپل جدي تبليغ پيل کړ چې په (١٣٥٧) هجري لمريز کال د کمونستانو کودتا وشوه او په دغه وخت تبليغ ډېر مؤثر ځکه ځنو خلکو فکر کاوه چې د دغه ډله خپل ځانونه د خلکو واقعي خدمتګاران معرفي کوي او د هغوی په منافقانه خبرو غولېږي نو بايد داسې کسان موجود وي چې د هغوی مفاسد او ناولي هيلې خلکو ته ښکاره کړي. دا فکر دی هم ونشي چې مرحوم فخرالمشايخ څو چې ئې د ځان او د خپلې کورنۍ د خطر احساس نه کاوه نو په خپل ځای کې ځکه د هغه خطر او د کمونستانو بد بيني د کودتا اول څخه معلومه ده ولې هغه د ثبات او استقامت له مخې چې دده په برخه ؤ د ملحدانو له تعقيب، بدبينۍ او تهديد څخه ويره نه درلوده دا دی يو له هغو دلايلو څخه چې زمونږ د دغه مدعا ثابتوي:

فخرالمشايخ د عادت له مخې د ګرمۍ په ورځو کې کوهدامن ته تلل او هم ئې څو ورځې د کاپيسا په کوهستان کې تيرولي او په دې سره ئې د دوستانو او مخلصينو سترګې روښانه کوي. او د منطقې د عالمانو، روحانيونو او سپين ږيرو خبرې ئې اخستې او مصيبت ځپلو ته ئې تسل ورکاوه. بيا به د چهاريکار ښار ته تلل او هلته په خپل شخصي کور کې چې د چهاريکار د جامع جومات ترڅنګ ؤ او دغه جومات د صاحب مبارک په جومات مشهور ؤ هستوګنه کوله او په دغه ځای کې د شا او خوا او د ښار خلک او مخلصان د هغه ملاقات ته راتلل او ور څخه ئې دعا اخسته او چا چې د قادريه په ميادکه

طریقه کې دداخلیفه لو هیله درلوده هغو ته ئې دد غې طریقې ښودنه کوله، خلک د جمعې په ورځ چه صاحب به په خپل د غه ځای کې تشریف درلود ډېر راتلل، تبلیغ د ښو عالمانو لخوا او لمونځ د فخرالمشائخ صاحب په امامت سره کېده. فخرالمشائخ صاحب کله کله د داؤدزائی تربېي ته تلل او کله د سبزسنګ قریې ته. د داؤدزائی په قریه کې جامع جومات و چه د هغه بنسټ د هډې صاحب ایښی و او هغه به ذکر هم په ورځو کې چه به د غه ځای ته راغې د هغه په حجره کې هستوګنه کوله او شیخ الاسلام صاحب (د ټکاب مبارک صاحب) هم داسې کول او د هغه له وفات څخه وروسته میاګل صاحب هم د غه طریقه غوره کړې وه. د د غه جومات ترڅنګه د شیخ الاسلام د هستوګنې ځای و او بیا وروسته د فخرالمشائخ د اوسېدلو ځای او ګرځېد.

د داؤدزائی د جامع جومات په هر لمانځه او بیا د جمعې په لمانځه کې د عالمانو، روحانیونو او د متدینو خلکو غونډه د لیدلو وړ وه. مسلمانان د تره باغ له شا او خوا تردې چه د چهاریکارو او له هغو ځایونو څخه چه له د غه جومات څخه (۳۰) کیلو متره لرې و. د داؤدزائی تربېي ته راتلل د ورځ له (۱۱) بجو څخه تبلیغ پیل کېده او مرحوم فخرالمشائخ په نورانی مخ او سپینو جامو جومات ته راته او تبلیغ ته ئې غوږ اېښود او که بیا تبلیغ نه کېده نو له لسو بجو د هغه په ځای د قرآن کریم ختم کېده. البته د قرآن کریم ختم او د طریقې ښودل د ژوندي زړه و نو خاوندانو د پاره د خاص کیفیت لرونکی و. فخرالمشائخ د سبزسنګ په قریه کې هم شخصي کور درلود او هلته جامع جومات هم و چه په د غه جومات کې د داؤدزائی د جامع جومات په شان لمونځونه، ذکرونه او ختمونه کېدل. کله به داسې هم کېدل چه فخرالمشائخ به قلعه بند ته راته او له د غه ځای څخه به د رمضان مبارک میاشت وه د قرآن کریم د ختم د پاره چهاریکار ته تشریف

ده، په چهاریکارو کی د قرآن کریم ختم به په دریوشپو کی کیده او په دغه ختم کی
به په زرگونو مسلمانانو گډون کاوه. د دریوشپو د ختم څخه وروسته به د شپږو
او لسو شپو ختم هم کیده ولی په دغو روستیو ختمونو کی به د گډونکونکو شمیر
د دریو شپوله گډونکونکو څخه به لږ ؤ.

مرحوم فخرالمشائخ په (۱۳۰۲) هجری لمریز کال ونه غوښتل چه خپل همیشه والی
عادت ته تغیر ورکړي او سپزسنگ ته لاړشي. ملحد حکومت د هغه د پټولوکند ادشونو
او حالاتو تحقیب کاوه. د ننگاب په ولسوالۍ کی یوه عسکری قوه موجوده وه او د دغه
قوه وخت په وخت د فخرالمشائخ صاحب په باب مرکز ته مخابره کوله. کوم وخت
چه د فخرالمشائخ صاحب مونږ د سپزسنگ په لار روان شونو په لاره کی د محمود راقی
په حصه کی چه عسکری توی ځای نیولی ؤ د هغه د موټر مخه نیسی ولی فخرالمشائخ صاحب
سره هیڅ ویره نه پیدا کیږی ولی بد بختانو چه هڅه کوله هغه ونیسی نو په
دغه وخت کی څو عادی سرو لیسونه د کابل د ننگاب او بگرات په لوری او د ننگاب
او بگرات څخه د کابل په لوری پیدا کیږی او د فخرالمشائخ صاحب موټر ته نږدی
دریږی او په دغه وخت د سرو لیسونو خلک راکوزیږی او د کوهستان او کاپیسا
د نږدی ځایونو خلک هم رارسیږی او دلته داسی حالت منځ ته راځی که چیری
د فخرالمشائخ صاحب سره د ملحدانو د توی لخوا نامناسب حرکت وشی نو ټول
خلک به ورته په مخکی ودریږی او د فخرالمشائخ صاحب به په کلکه دفاع د کوی
په دغه وخت کی یو شخص د کاپیسا د لوی ولسوال په نامه رارسیږی او عذر
کوی او وائی چه عسکرو میاګل صاحب ته نه دی پیژندلی او دغه کار په سهوی
سره شوی ولی خلک پوهیږی چه اصل مطلب څه ؤ او حکومت ولی د میاګل

صاحب له نیولو او د بیرولو څخه لاس واخست د خلکو دا غوښتنه یې ومنله او د هغو زړه ورو خیرو د حال په ژبه خبر ورکاوه چې یې نو فخر المشائخ صاحب ته څه ضرر ورسیږي نو خلک به هیڅکله بې مداخلې پاتې نشي او په حتمي ډول به له خپل محترم مشر څخه دفاع کوي.

فخر المشائخ صاحب له دې پېښې څخه وروسته سپین ږیری ته څي او هلته د جهاد تبلیغ پیل کوي او په دغه وخت کې هغه مو تر چه په کې د هغه د کور سامان و هم رسیږي او د حکومتي قواو له خوا تلاشي کیږي او دغه تلاشي کول د دې حقیقت ثبوت کوي چه د کابینه ادلوی ولسوال دا خبره چه د فخر المشائخ موټر سهوه او اشتباها درول شوی یعنې غلط او حقیقت یې څه و.

فخر المشائخ صاحب ښه پو هیده چه کمونستان له ډیرو کلونو هغه ته د ضرر رسولو په فکر کې و ولې د فخر المشائخ صاحب داسلامي رسالت سره رسول او جهاد ته د هغه تیاری او استقامت د دې بیانونکی و چه داکمان نشي کیدی چه هغه د خپل ځان او د خپل اولاد له مرګ څخه څه ویره کوي، هغه داسې مرګ ته په هغه ژوند باندی چه د ملحدانو د حکم او ذلت سره مخالف وی ترجیح ورکوله.

جناب فخر المشائخ په (۱۳۶۱) هجری لمریز کال د سنبلې په میاشتو د خپلې کورنۍ د اوونو سره د سعودی عربستان هیواد ته تشریف وړی او دا چه حج ادا کړي او د افغانستان د پاره دعا وکړي او د جهاد د پاره بیرته ستون شي نو ورته د بیرته ستنیدلو فرصت نه پیدا کیږي او د بل کال د حج د پاره چه حج اکبر و پاتې کیږي.

او په دې حج سره د هغه د مجونو شمیر لسګلو مجونو څخه زیاتیږي

دد غه روستني ځ په ورځوکي ددی احساس کوی چه عمرئ پای ته رسیدلی دی. د فرضی طواف له کولو ځخه وروسته دی ته نه حاضریږی چه د احرام جامه له تن ځخه لری کړی ځکه دهغه یواځني هیله دا وه چه په همدغی جامی سره دخپل خدای حضور ته ورشی نو صحت ئې ورځ په ورځ مخ په خرابیدلو او دڅرونډ لمرئ مخ په ولیدلو و. معالج ډاکټر دهغه تداوی کوله بیا د حاجی آغا او دهغه د نورو منسوبینو په تقاضا تداوی لیس کیږی او معالج ډاکټر په تعجب سره دعلت پوښتنه کوی. علت څرګند و او علامی ښکاره وی ولی ډاکټر قناعت نکوی. لاخره د تیقی تبری نه وی چه په هغه بانديِ د ځنکدن حالت مشاهده کیږی او خپل روح د کائیناتو خالق ته سپاری. معالج ډاکټر چه بی له خونبسه د داع کړی وه د افغاني رباط ښکته پورته نه و رسیدلی چه د جناب فخرالمشائخ صاحب د وفات خبر وررسیږی او د هغه د منسوبینو د پوهی او بیداری په باب په تعجب کی لیدل کیږی. په دغه وخت کی دوستان له هری خوا ځانونه رسوی او ددغه مرحوم جنازه په ډیر افتخار سره اوږو اخلی او ددی انتظار باسی چه په مرحوم باندی د سبا دلمانځه ځخه وروسته د جنازی لمونځ وشی. د سبا د لمانځه ځخه وروسته غوښتنه کیږی چه د میاګل صاحب جنازه دا وړل شوه او بیا هماغه ځای چه په سلهاو زرو مسلمانانو دهغی د جنازی لمونځ ادا کړ او ورته ئې د خیر دعا وکړله.

د جنازې له لمانځه څخه وروسته د (۱۴۰۳) هجري قمري کال د ذوالحجې په (۲۵) په جنت المعلی کې دفن شو.

د مرحوم فخرالمشائخ د مړينې خبر د ذوالحجې په اتم ولسيتمه پيښور ته ورسيږي او د هغه د منسوبينو لخوا د ۱۳۶۲ هجري لمريز کال د ميزان په (۱۶) او (۱۷) نيټه د پيښور د عيدګاه په جامع جومات کې د مرحوم فاتحه اخستل کيږي او په دغه فاتحه کې په زرګونو عالمان، روحانيون مجاهدين، مهاجرين او د پاکستان انصار ورګډون کوي.

د ۱۹۸۳ ميلادي کال د اکتوبر په (۳۱) نيټه جناب حاجي آغا، صوفي جان آغا او د مرحوم نور منسوبين د سعودي عربستان څخه پاکستان ته رسيږي. او بيا د عقرب شپاړسمه د فاتحې ورځ اعلانوي او فاتحې ته په زرګونو علاقه مندان راځي.

بيا د جمعې په ورځ کې د قرآن کريم ختم کيږي او د (۱۳۶۲) هجري لمريز کال د عقرب په شپاړسمه نېټه د حاجي آغا د دستار بندۍ لويه غونډه کيږي. او حاجي آغا د مرحوم فخرالمشائخ صاحب د جانشين او نائب په حيث ټاکل کيږي.

جناب مياګل صاحب په ژوندانه کې خپل دري زامن حاجي آغا چه نوم ئې جناب احمد آغا دی او صوفي جان چه نوم ئې جناب حامد آغا دی او متواضع جان چه نوم ئې جناب حميد الله آغا دی د خپلو خليفه ګانو او ماذونانو په حيث ټاکلي او په دغه خلافت کې دري واړه مساوي مګر حاجي آغا ئې د مشرتوب له حيثه خپل لومړنی نائب

وتاکل او ددغه نیابت مراسم په مکه معظمه کی پرځای شول۔

باید وویل شي چه فخرالمشائخ (رحمت الله علیه) پنځه زامن درلودل چه دهغوله جملی څخه دد ریوتنو یاددونه وشوه۔ بل دهغه مشر زوی میاجي صاحب دی چه نوم ئې محمد سعیدؤ اونوموړی په (۱۳۲۳) هجری لمریز کال کی وفات شوی او دهغه څخه محترم مجاهد حاجي ګل آغا چه نوم ئې جناب محمود آغا دی پاتی شوی دی چه دغه نوموړی هم دمرحوم فخرالمشائخ صاحب دخاصی توجه ورګرځیدلی ؤ او دخپل ماذون په حیث ئې تاکلی ؤ۔ دمرحوم بل زوی جناب حمیدالله آغا مشهور په شاه جان آغا ؤ چه دکابل دکمونستي حکومت لخوا بندی شو او تراوسه پوری (۱۳۶۲) درک ئې معلوم نه دی او په غالب ګمان چه شهید شوی وی (انالله وانا الیه راجعون) ددغه شهید څخه چه یو متدین او زړور شخص ؤ پنځه زامن پاتی دی چه هغه د محمد سلیمان آغا، محمد آصف آغا، محمد فرید آغا، محمد یعقوب آغا او محمد داؤد آغا څخه عبارت دی چه دغو ټولو په مقدس جهاد کی برخه اخستی او لاتراوسه په جهاد کی مشغول دی۔

په پای کی دمرحوم فخرالمشائخ صاحب دپاره دلوی او مهربان خدای په دربار کی دمغفرت او ورته دد پراجراو عزت دعا کوو او وایو:

اللهم اغفره وارحمه واسکنه جنة الفردوس، وحقق اماله الحسنة فی حق الاسلام والمسلمین ونصرة المجاهدین فی سبیلك فی کل مکان

لا سيما المجاهدين الافغان، وانقذ بلدهم الاسلامى وسائر البلدان الاسلامية من شر الكفار والملحدين. كذلك ندعوك اللهم ان ترزق اهل الفقيد العزيز الصبر والسلون والاجر الجزيل وان تجعلهم ائمة المهدى والعلم وانصار الدينك الحنيف. وصلى الله على سيدنا ومولانا محمد وعلى آله واصحابه ومن تبعهم باحسان الى يوم الدين.

پیښور — ۱۳۶۲ هجرى لمريز كال عقرب.

| شماره | موضوع | مخ |
| --- | --- | --- |
| ۱ | د مترجم خوخبري | الف، ب، ج |
| ۲ | لومړی فصل د فخر المشائخ میا ګل صاحب علمي ژوند | ۶ |
| ۳ | د تکاب د حمیدیه شریفیه مبارکه مدرسه | ۹ |
| ۴ | د مدرسې د طالبانو اعاشه، هستوګنه او د درس څرنګوالی | ۱۴ |
| ۵ | دار الحفاظ | ۱۸ |
| ۶ | دوهم فصل د مرحوم فخر المشائخ تصوفي ژوند | ۲۲ |
| ۷ | دریم فصل د سیاست مدارانو سره د هغه صراحت د دنیا او د دیني عالمانو پر اعتصابونو او مظاهرو کې د هغه ګډون کول۔ | ۴۰ |
| ۸ | د بیرغ کال | ۴۲ |
| ۹ | د اتحاد څخه مخنیوی په غرض د مرحوم توجه | ۴۶ |
| ۱۰ | څلورم فصل د دغه لوی مجاهد د جهاد او هجرت په باب او د جهاد په ساحه کې د هغه خدمتونه۔ | ۵۱ |


پای

بسم الله الرحمن الرحیم

بمناسبت وفات فخرالشیخ سرور مهاجران چشم وچراغ اهل طریق
مخدومنا و مولینا محمد شریف تگابی مولداً
و هروی مدفناً

آه از فخرالشیخ رهنمای اهل دل
آنکه قطب راز دانش کاشف اسرار بود
خانقاهٔ قادری را بود مهر تابناک
بوستان خواجگان را ابر دریا بار بود
عارف حق عالم دین رهبر روشن‌ضمیر
خازن گنج علوم سید ابرار بود (صلی الله علیه وسلم)
در جهاد راه حق در حفظ ناموس وطن
شیرمرد رزمجوی و سرور سالار بود
شد مهاجر از وطن در آخر عمر عزیز
گرچه خود در امر دین از زمرهٔ انصار بود
بعد طوف خانهٔ حق نزد جانان داد جان
جان سپردن این چنین دلدادگان را کار بود
زادگاه وی تگاب و خوابگاهش کوی یار
ای خوشا مردی که خاکش در حریم یار بود
در دم آخر نیاز وی ز درگاه خدا
رستگاری وطن از پنجهٔ کفار بود
سال تاریخ وفاتش در «مظهر انوار» گوی
۱۴۰۳ هجری قمری
زانکه وی در زندگانی مظهر انوار بود

هدیهٔ اخلاصمند دیرینه و منتسب فضل الهی
عبدالاحد حنبلی

